المملكة العربية السعودية
وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد
152

# حج أو عمرة

## د قرآن او سنتو په رڼا کې



ليکوال:
سماحة الشيخ عبدالعزيز بن عبدالله بن باز
رحمه الله

وكالة المطبوعات والبحث العلمي
info@islam.org.sa

# حج أو عمرة

## د قرآن او سنتو په رڼا کې

ليکوال:

سماحة الشيخ عبد العزيز بن عبد الله بن باز

رحمه الله

ژباړن:

نظام الدين عبد الجبار (شائق)

چاپ او خپرونکې

ودعوت او ارشاد أو وإسلامي چارو وزارت

سعودی عربستان

ⓗ وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد ، ١٤٣٢ هـ
**فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر.**
ابن باز، عبد العزيز بن عبد الله
التحقيق والإيضاح .- الرياض.

١٤٤ص ، ١٢×١٧سم
ردمك ٩-٢٠٢-٢٩-٩٩٦٠

(النص بلغة البشتو)
١-حج ٢- العمرة أ- العنوان.
ديوي ٢٠٢,٥ ١٩/٠٤٨٥

رقم الإيداع : ١٩/٠٤٨٥
ردمك ٩-٢٠٢-٢٩-٩٩٦٠

**الطبعة السادسة عشرة**
**١٤٣٩ هـ**

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

# سریزه

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده.

أما بعد...

درنو او محترمو لوستونکو!

د قرآن او سنتو په رڼا کي د حج او عمري د مسئلو په اړوند دغه کتاب یوه لنډه شان څرګندونه ده چه په مد لله توګه ما د خپل ځان او نورو مسلمانانو لپاره په زیار ویستني سره کښلي دي.

دغه کتاب د لومړي ځل لپاره په ۱۳۶۳ سپوږمي کال کي د جلالت مآب پاچا عبد العزیز بن عبد الرحمان الفیصل په مصرف چاپ او ډګر ته راووت، الله دي هغه ته ستر اجر ورکړي او روح دي ښاد ولري.

بیا ما د اړتیاؤ سره سم یو څه نور مسائل هم پري ور زیات کړل او هغي د بیا چاپولو لپاره مي هڅه وکړه تر څو که الله رب العزت غوښتل خپلو بندګانو ته به پري ګټه ورسوي، مونږ دغه کتاب د «حج او عمره د قرآن او سنتو په

رڼا کي » په نامه سره ونوماوه.

هو! وروسته بيا موږ پرې څه نوري مهمي زياتوني هم وکړي تر څو په بشپړه توگه گټوري ثابتي شي، او دغه کتاب ډير ځله چاپ شوي، له لوي خداي جل جلاله څخه هيله من يم چه د دغه کتاب گټه عامه او زما کوښښ د خپلي رضا سبب وگرځوي، او موږ ته پرې په جنت کي ځاي راکړي.

لوي خداي جل جلاله زموږ لپاره بس او خورا ښه وکيل دي.

ولا حول ولا قوة إلا بالله العلي العظيم

مؤلف

**عبد العزيز بن عبد الله بن باز**

**د سعودي عربستان د علمي څيړنو افتاء دعوت**

**او ارشاد د ادارو عمومي رئيس.**

الحمـد لله رب العلمين والعـاقبـة للمـتـقين والصلاة والسـلام على عـبـده ورسـوله مـحـمـد وعلى آله وصـحـبـه أجمعين.

اما بعد:

دغـه كـتـاب چه سـتـاسـو په لاس كي دي او لولي يي د حج او د هغـه د فضيليتونو او آدابو په لړ كي يوه لنډه شان ليكنه ده چه كه څوك د حج د سفر اراده ولري نو په دي اړه په دغه كـتاب كي د حج او عمري او زيارت مسائل څيړل شوي، موږ په دغه څيړنه كي په قرآن او سنتو استناد كړي. غواړو په دي توگه مسلمانو ته نصيحت وكړو، او د الله په دي قول عمل كړي چه فرمايي:

﴿ **وذكر فإن الذكرى تنفع المؤمنين** ﴾ [الذاريات: آية ٥٥]

ژباړه: او تل نصيحت كوه پس بيشكه چه ذكر پند گټه (فائده) رسوي مؤمنانو ته».

او د الله په دي قول چه فرمايي: ﴿ **وإذ أخذ الله ميثاق الذين أوتوا الكتاب لتبيننه للناس ولا تكتمونه** ﴾ الآية

[آل عمران: آية ١٨٧]

ژباړه: «او ياد کړ هغه وخت چه واخست الله عهد محکم له هغو کسانو څني چه ورکړي شوي دوي ته کتاب چه خامخا به بيانوي تاسي هرومرو ( خامخا ) دا ( کتاب ) خلقو ته او نه به يي پټوي ».

او د الله په دي قول چه فرمايي: ﴿ **وتعاونوا على البر والتقوى** ﴾

[ المائدة: آية ٣ ]

ترجمه: او مرسته ( مدت ) کويء تاسي يو تر بله په نيك کار او تقوى ( پرهيزگاري ) کښني ».

او لکه څنگه چه په يو صحيح حديث کي د رسول الله ﷺ څخه نقل دي چه فرمايي: « الدين النصيحة » ثلاثا قيل لمن يا رسول الله؟ قال: « لله ولكتابه ولرسوله ولأئمة المسلمين وعامتهم ».

ژباړه: دين نصيحت او خير غوښتنه ده، دري ځله يي دغه خبره تکرار کړه. پوښتنه وشوه چه يا رسول الله د چا لپاره؟ ويويل: د الله او د هغه د کتاب او د هغه د رسول په نسبت، د مسلمانانو د پاچايانو او د ټولو مسلمانانو لپاره »

طبراني د حذيفه رضي الله عنه څخه روايت کړي چه رسول الله ﷺ وفرمايل:

ژباړه: «څوك چه د مسلمانانو د أمورو په نسبت اهتمام و نه لري د مسلمانانو له ډلي څخه نه دي».

او هغه څوك چه بيگا او سبا کړي او دي د الله، او د هغه د كتاب، او د هغه د رسول، او د مسلمانانو د ائمه وو او ټولو مسلمانانو په نسبت نصيحت كونكي او خير خواه و نه وسيږي، دي د هغوي د ډلي څخه نه دي.

له الله څخه غواړم چه زموږ په دغه ليكنه مسلمانانو ته گټه ورسوي، او زمور كوښښ د خپلي رضاء او جنت ته د ورتلو سبب وگرځوي، بي له شكه دي اوريدونكي او قبلونكي او د ستر واك څښتن دي.

# د حج او د عمري د فرضيت دليلونه:

كله چه دا څرګنده شوه نو پوه شيء - الله دي ما او تاسي ته د حق د پيژندني او د هغه د پيروي بشپړ توفيق را په برخه کړي - چه الله جل جلاله پر خپلو بندګانو د بيت الله الحرام حج فرض کړي، الله جل جلاله په دي برخه کي داسي ارشاد فرمايي:

**﴿ولله على الناس حج البيت من استطاع إليه سبيلاً، ومن كفر فإن الله غني عن العالمين﴾**

[آل عمران: آية ۹۷]

ژباړه: «او (واجب دي) الله لره پر خلقو حج (قصد کوي په نيت د حج) د (دي) بيت (الله دا) دي پر هغه چه قدرت لري طرف ده ته د لاري، او هر څوك چه كافر شو (ويي نه مانه) نو بيشكه الله بي پروا دي له تول عالم (يعني له هر چا او هر شيء) نه».

په صحيحينو کي له ابن عمر رضي الله عنه څخه

روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «اسلام پر پنځو څيزنو بنا شوي: گواهي په دي خبره چه پرته له الله جل جلاله نه بل څوك حقيقي معبود نشته، او محمد ﷺ د الله استاذي دي، بل لمونځ كول، او زكات وركول، د رمضان د مياشتي روژه نيول، او بيت الله شريف حج كول دي».

سعيد په خپل سنن كي له عمر بن الخطاب څخه روايت نقل كړي فرمايي چه: «زه اراده او قصد لرم چه دغو ښارونو ته سړي واستوم تر څو دوي، وگوري چه څوك د شتو خاوندان دي او حج نكوي په هغوي جزيه مقرر كړي، دا ځكه چه دوي په حقيقت كي مسلمانان نه دي او بيا هم نه دي.

له علي رضي الله عنه څخه روايت دي چه فرمايي: «څوك چه د حج توان او قدرت لري او حج ونكړي هيڅ پروا نلري كه يهودي ومړ او كه نصراني».

پر هغه چا چه د حج توان او قدرت لري او حج ئي نوي كړي لازمه ده چي بيړه وكړي او ژر تر ژره حج وكړي

ځکه چه د ابن عباس څخه روایت دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: «د حج د فریضي د ادا کولو په لور بیړه وکړيء ځکه له تاسو څخه یو هم په دي نه پوهیږي چه څه به ور پیښ شي». رواه أحمد.

بله دا چه څوك حج ته د لاري د تلو راتلو توان ولري په هغه بي له ځنده حج فرض دي، او د الله جل جلاله دا وینا د دي ښکارندویه ده: «او (واجب دي) الله لره پر خلقو حج (قصد کول په نیت د حج) د (دي) بیت (الله دا) دي پر هغه چه قدرت لري طرف ده ته د لاري، او هر څوك چه کافر شو (ویي نه مانه) نو بیشکه الله بي پروا دي له ټول عالم (یعني له هر چا او هر شيء) نه».

بله دا چه رسول الله ﷺ په خپله خطبه کي وفرمایل: «أي خلکو، الله پاك په تاسي حج فرض کړي نو بي له ځنده حج وکړي». رواه مسلم)

دغه راز د عمري په برخه کي هم ډیر احادیث راغلي چه د هغي پر وجوب دلالت کوي چه هغي له جملي څخه یو څو یي دادي:

د جبریل په حدیث کي رسول الله ﷺ جبریل ته وویل: «اسلام داده چه ته گواهي ورکړي په دي خبره چه پرته له الله (جل جلاله) څخه بل حقیقي معبود نشته، او محمد ﷺ د الله جل جلاله استاذي دي، لمونځ به ادا کړي، زکات به ورکړي، د بیت الله حج به وکړي، عمره به وکړي، له جنابت څخه به غسل وکړي، اودس به بشپړ کړي، او د رمضان روژه به ونیسي».

(أخرجه ابن خزيمة والدار قطني من حديث عمر بن الخطاب رضي الله عنه وقال الدار قطني: هذا إسناد ثابت صحيح).

او بل د بي بي عائشي رضي الله عنها حديث چه فرمايي: أي د الله جل جلاله رسوله* آيا پر ښځو جهاد شته؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: «پرهغوئ يو داسي جهاد فرض دي چه جګړه پکي نشته او هغه حج او عمره ده».

(أخرجه أحمد وابن ماجه باسناد صحيح).

حج او عمره په ټول عمر کي - يو ځل فرض دي ځکه د رسول الله ﷺ څه په يو صحيح حديث کي نقل شوي

چه فرمايي: «حج په ټول ژوند کي يو ځل فرض دي که څوك زيات حجونه کوي نو هغه د هغه لپاره نفلي دي».

زيات حجونه او عمري کول دا سنت دي، ځکه په صحيحينو کي د ابو هريرة رضي الله عنه څخه نقل دي چه فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل: يوه عمره تر بلي پوري رژونکي ده د هغو گناهونو چه د دواړو په مينځ کي واقع شوي وي او د قبول شوي حج لپاره د جنت څخه پرته بله بدله نشته».

## له گناهونو څخه توبه ويستل او له ظلمونو څخه ځان گوښه کول:

کله چه يو مسلمان د حج د عمري په لور د سفر اراده وکړي نو مستحب ده چه خپلي کورني او دوستانو ته په تقوى سره (چه عبارت دي د الله جل جلاله د اوامر پر ځاي کول او له نواهيو څخه يي ځان ژغورنه) وصيت وکړي.

او لازمه ده تر څو وليکي چه زما په پلانکي، او د پلانکي په ما، دومره دومره قرض او پور شته او په دي گواه

وړاندي کړي.

دته له ټولو گناهونو څخه د توبي لورته ځغاسته پکار ده، الله تعالی فرمايي:

﴿وتوبو إلى الله جميعًا أيها المؤمنون﴾

[النور: آية رقم: ٣١]

ژباړه: «او توبه وباسي تاسي الله ته ټول اي مؤمنانو! د پاره د دي چه تاسي شيگنه او خلاصي ومومىء (په دارينو کي)».

د توبي حقيقت دا دي چه له ټولو گناهونو ځان را وباسي او نور گناهونه کول پريږدي او په تيرو شويو گناهونو پښيمانه شي، او کلك عزم وکړي چه بيا به گناه نکوي، که يو چا د چا په ځان، مال، او آبرو تيري کړي وي نو هغه دي جبران کړي او تر سفر د مخه دي ځان ور څخه خلاص کړي ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: (که چا د خپل مسلمان ورور په نسبت، يا د هغه د مال او آبرو په نسبت څه تيري کړي وي، نو نن ورځ دي پخوا تر هغي ورځي چه نه پکي دينار وي او نه درهم ځان ور څخه خلاص کړي،

ځکه د قیامت په ورځ بیا د هغه د ظلم په اندازه نیك عمل ور څخه اخستل کیږي او مظلوم ته ورکول کیږي او نیکه عمل و نه لري نو د مظلوم گناه پر هغه پیټي کیږي».

لازمه ده چه یو حاجي د حج او عمري د سفر لپاره حلاله او پاکیزه نفقه برابره کړي ځکه رسول الله ﷺ فرمایي:

«الله پاك دي او پاك ځيز خوښوي».

طبـــراني د أبو هریره رضي الله عنه نه نقل کـــړي. فرمایي: رسول الله ﷺ وفرمایل: «کله چه یو سړي د حج په نیت له پاکیزه نفقي سره وځي او پښه رکاب ته کیږدي او غږ پورته کړي چه: «أي الله زه حاضر یم زه حاضر یم» نو له آسمان څخه پري غږ وشي چه موږ ته ډیر نیکمرغه يي ستا توښه پاکه ده او ستا سوارلي پاکه ده ستا حج قبول دي، ستا حج معیوب نه دي. او کله چه یو سړي د ناپاکي نفقي سره د حج په نیت وځي او پښه په رکاب کیږدي او غږ پورته کړي چه: حاضر یم أي الله زه حاضر یم، نو د الله څخه پري غږ وشي چه موږ ستا خدمت ته چمتو نه یو ته

نیمکرغه نه یي ستا توبنه او نفقه حرامه ده او ستا حج غیر مقبول دي».

حاجي ته مناسبه ده چه مستغني اووسیږي او د دخلکو نه د سوال کولو څخه ډډه وکړي، څکه رسول الله ﷺ فرمایي: «چا چه د سپیڅلتیا غوښتنه وکړه الله جل جلاله به یي سپیڅلي کړي او چا چه د بډاي توب غوښتنه وکړه الله جل جلاله به یي بډاي کړي» بل دا چه پیغمبر ﷺ فرمایي: «یو سړي تل د خلکو څخه سوال کوي تر دي چه د قیامت په ورځ را مخ ته شي نو په مخ به یي یو پوټي غوښه هم نه وي».

«په حاجي باندي لازمه ده تر څو په حج او عمره کي د الله جل جلاله رضا هدف وګرځوي، په سپیڅلیو ځایونو کي په وینا او عمل سره د آخرت کور او الله جل جلاله ته نیژدیکت مقصد وګرځوي، او له هر ډول تکبر فخر او ریا، څخه ځان وژغوري، ځکه ریا، د انسان أعمال له بیخه نړوي».

لکه الله جل جلاله فرمایي: ﴿**من كان يريد الحياة الدنيا**

**وزينتها نوف إليهم أعمالهم فيها وهم فيها لا يبخسون. أولئك الذين ليس لهم في الآخرة إلا النار وحبط ما صنعوا فيها وباطل ما كانوا يعملون** ﴾.

[ سورة هود: آيتونه ١٥ - ١٦ ]

ژباړه: « هر څوك چه وي (له خپلي كم همتي) چه غواړي يواځې ژوندون لر پس او بشائست د ده (او د آخرت فكر نكوي) نو پوره به وركړو دوي ته (بدل د) اعمالو د دوي په دي دنيا كښي حال دا چه دوي په دي دنيا كښي نه شي كم كيدلي (له بدل د اعمالو د دوي هيڅ شي). دا هغه كسان دي چه نشته دوي ته په آخرت كي مگر اور (د دوزخ) او خراب (ابته) شوي دي هغه (نيك عمل) چه كړي ۇ دوي په دنيا كښي او باطل دي (په آخرت كي) هغه عمل چه وو دوي چه كوو به يي (په دنيا كښي).

دغه راز فرمايي: ﴿ **من كان يريد العاجلة عجلنا له فيها ما نشاء لمن نريد ثم جعلنا له جهنم يصلاها مذمومًا مدحورًا. ومن أراد الآخرة وسعى لها سعيها وهو مؤمن فأولئك كان سعيهم**

مشكورًا ﴾

[الأسراء: الآيتان ١٨ / ١٩].

ژباړه: «هر څوك چه وي چه غواړي (په عمل خپل سره فقط دغه دنيا، نو په تلوار به ورکړو مونږ ده ته په دي دنيا كښي هومره چه مشيت وفرمايو مونږ د پاره د هغه چا چه اراده وفرمايو مونږ بيا به وگرځوو مونږ ده ته (عذاب د) دوزخ (په آخرت كښي) چه ننوځي به په هغه دوزخ كښي ملامت كړي شوي شړلي شوي (له رحمت) او هر څوك چه غواړي آخرت (جنت) او سعي كوي هغه ته سعي لائقه د ده (په طاعت د الله) حال دا چه دي (خالص)، مؤمن هم وي نو دغه كسان ده سعي د دوي مقبوله (په نزد د الله كښي)».

رسول الله ﷺ فرمايي: چه الله تعالى وفرمائل: (زه د شرك په نسبت د ټولو شركاوو نه زيات بي پروا او غني يم كه چا يو عمل وكړ او په هغه كي يي له ما سره بل څوك شريك كړ، نو ما دي او د هغه شرك پريښود).

دغه راز حاجي ته لازمه ده تر څو په خپل سفر كي له

سو خلکو متقيانو ديني عالمانو سره ملګرتيا وکړي او د بې عقلانو او فاسقانو له ملګرتيا څخه د ده وکړي.

په دې توګه حاجي ته دا هم لازمه ده تر څو د حج او عمرې د مناسکو د ادا کولو په لړ کې پوهه تر لاسه کړي او ځان د بصيرت څښتن کړي.

دي چه په موټر يا طياره کې سپريږي نو بايد بسم الله او درې ځله الله أکبـــر ووايي او بيـــا دا الفـــاظ ولولي: ﴿ **سبحان الذي** سخّر **لنا هذا وما كنا له مقرنين وإنا إلى ربنا لمنقلبون** ﴾

[الزخرف: آيت ١٣].

او بيـا دا دعا ولولي: (اي الله زه له تا څخه په خپل دې سفر کې د نيکي او تقوی غوښتنه کوم، او د داسې عمل چه ته پرې خوښيږې، اي الله دا سفر موږ ته آسانه او لنډ کړې، اي الله ته د سفر تر ټولو ښه ملګرې او په کور کې خورا ښه خليفه يې، اي الله تا ته د سفر د ستړيا، په مال او أهل کې د يو بد او ناوړه ليدو او کتو څخه پناه در وړم). (رواه مسلم)

لازمه ده چه حاجي به په سفر کي به ذکراو استغفار او دعاګاني زياتي کوي الله ته به عذر او زاري ډيره کوي، قرآن به ډير لولي، او د هغه په معانيو کي به فکر او تدبر کوي، پنځه وخته لمونځ به په جماعت سره کوي، له بي ځايه ويناوو څخه به د ډه کوي، ټوکي او ټکالي به نکوي دروغ او غيبت به نکوي له شيطانت او مسخرو څخه به ځان ساتي.

امر بالمعروف او نهي عن المنکر به کوي چا ته له ضرر رسولو څخه به په کلي توګه د ډه کوي.

## هغه څه چه يو حاجي يي ميقات (ځاي د احرام تړلو) ته د رسيدو پر وخت کوي

کله چه حاجي ميقات ته ورسيږي نو مستحب ده چه بايد غسل وکړي، او خوشبويي استعمال کړي څکه چه رسول الله ﷺ د احرام په وخت ګنډل شوي جامي ليري کړي، او غسل يي وکړ، په صحيحينو کي له بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت ده فرمايي چه «ما به رسول

الله ﷺ ته د هغه د احرام څخه تر مخه او وروسته پخوا تر دي چه طواف افاضه وکړي خوشبويي برابروله » .

او رسول الله ﷺ بي بي عائشي ته کله چه حائضه شوه او د عمري احرام يي تړلي وو امر وکړ تر غسل وکړي او د حج احرام وتړي .

دغه راز رسول الله ﷺ أسماء بنت عميس کله يي چه په ذو الحليفه کي بچه وځيږاوه ، امر وکړ تر څو غسل وکړي او ځان په جامه وتړي او بيا احرام وتړي .

دا ټول په دي دلالت کوي چه کله سنځه ميقات ته ورسيږي او حائضه يا نفاسه وي غسل به کوي او له خلکو سره به احرام تړي ، تول هغه څه چه يو حاجي يي کوي نفاسه او حيضه به يي هم کوي ، مگر د بيت الله طواف به نکوي لکه څنگه چه رسول الله ﷺ بي بي عائشه او أسماء ته په دي سره امر کړي وو .

هغه چا ته چه غواړي احرام وتړي مستحب ده تر څو بريتونه او نوکان او د نامه لاندي ځاي او تخرگونه واخلي تر څو د احرام تړلو څخه وروسته ورته اړتيا پيښنه نشي

ځکه رسول الله ﷺ په دې اړه امر کړی لکه په صحیحینو کې له أبو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چه رسول الله ﷺ فرمایي: «پنځه څیزونه فطري سنت دي: ختنه (د ماشوم سنت کول) د نامه لاندي، ویښته خریل، د بریتونو لنډول، د نوکانو او تخرګونو اخیستل».

په مسلم شریف کې له أنس رضي الله څخه نقل دي دي فرمایي چه: «رسول الله ﷺ موږ ته د بریتونو د لنډولو د نوکانو او تخرګونو د اخستلو، او د نامه څخه د لاندي ویښتو خریولو په اړه وخت ټاکلي وو چه تر څلویښتو ورځو څخه زیات به یې نه پریږدو، د احرام تړلو څخه وروسته د سر د ویښتانو اخیستل یا خریول نه د نارینه ؤ لپاره جواز لري او نه دښځو لپاره مګر د ږیري خریول یا لنډول هر کله او هر وخت حرام دي».

په بخاري او مسلم کې له ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل دي چه رسول الله ﷺ فرمایي:

«له مشرکانو څخه مخالفت وکړي ږیري اوږدي کړي او بریتونه واخليء. بل حدیث کې ابو هریره رضي الله عنه

له رسول الله ﷺ روايت نقل کوي فرمايي: «له مجوسيانو څخه مخالفت وکړي، بريتونه واخلئ او ږيري پرېږدي».

په نني عصر کي دا مصيبت زيات شوي چه يو زيات خلك له دغه سنت څخه مخالفت کوي او له ږيرو سره په جګړو بوخت دي او ځانونه يي له کفارو او ښځو سره په يو ځير کړي، په ځانګري ډول د علم او پوهي خاوندان فإنا لله وإنا إليه راجعون، الله نه غواړو چي مونږ او ټول مسلمانانو ته په سنتو باندي د عملو کولو توفيق راکړي.

بيا به نارينه يو لنګ او يو څادر واغوندي، او مستحب ده چه بايد سپين او پاکه وي، او دا هم مستحب ده تر څو په څپلکو (پڼو) کي احرام وتړي، ځکه رسول الله ﷺ فرمايي:

«تاسو بايد په لنګ او څادر او پڼو کي احرام وتړي».

د ښځي لپاره روا ده چه په هر ډول لباس کي چه وغواړي احرام تړلي شي، مګر په لباس کي به ځان له نارينه ؤ سره نه په يو ځير کوي، دا چه ځينو تر ښځو پوري شني او توري جامي د احرام لپاره خاص کړي، دا کوم اصل نلري.

له دي څخه وروسته به په زړه کي نیت کوي او د حج او عمري په مناسکو کي به داخلیږي، ځکه رسول الله ﷺ فرمایي: «د عملونو دار او مدار تر نیته پوري اړه لري او هر چا ته د هغه د نیت ثمره رسیږي».

تلفظ په نیت سره هم ورته روا دي کــه نیت یي د عـمري وي نو وبه وایي: «اي الله د عـمري لپاره ستـا په وړاندي حاضر یم»

او کــه نیت یي د حج وي نو و بـه وایي «الله د حج لپاره ستا په وړاندي حاضـر یم، ځکه پیغـمبر ﷺ دا کـار کړي و، او غوره داده چه کله د سوارلي مرکب ته وخیژي نو دا الفاظ به ووایي، ځکه پیغمبر علیه السلام همداسي کړي وو او همدا خبره د اهل علمو په نزد صحیح ده. تلفظ په نیت سره د احرام نه پرته په بل څه کي روا نه دي، اما په احرام کي له رسول الله ﷺ څخه نقل ثابت دي.

اما د لمانځه او طواف او نورو لپاره تلفظ کول په نیت سره مناسب نه دي، داسي به نه وایي چه: نیـت مي کړي د زره د اخلاصه داسي، داسي لمونځ، یا داسي داسي طواف

کوم، ځکه داسي کول، بدعت دي او په زوره ( جهر ) سره نیت کول بیخي بده گناه ده، او که تلفظ کول په نیت سره جائز واي نو رسول الله ﷺ به د خپلي کړني او وینا په اساس خپل امت ته بیان کړي واي، او یا به دا کار صالحینو سلفو کري وو.

هر کله چه نه له پیغمبر ﷺ نه نقل دي او نه له صحابه وو څخه، نو معلومه شوه چه دا بدعت دي.

رسول الله ﷺ فرمایي: «بدترین د امورو څخه محدثات دي او هر بدعت گمراهي ده» ( مسلم شریف ).

## د احرام تړلو ځایونه پنځه دي:

لومړي: د اهل مدینه وو میقات – د احرام تړلو ځاي – ذو الحلیفه ده چه نن ورځ ورته خلك آبیار علي وایي.

دویم: د شامیانو میقات جحفه ده او دا یو زوړ کلي دي چه رابغ ته نیږدي دي، نن ورځ خلك د رابغ نه احرام تړي او دا صحیح ده ځکه چه رابغ دغه وران کلي ته بیخي نیږدي دي.

دریم: د نجدیانو میقات قرن المنازل دي چه نن ورځ خلك
ورته سیل وایي.

څلورم: د یمنیانو میقات یلملم دي.

پنځم: د عراقیانو میقات ذات عرق دي.

هو! د احرام د ټولو دغه ځایونه د ټولو هغه خلکو لپاره دي چه په دغو ځایونو تیریږي او لازمه ده چه باید دغو ځایو ته په رسیدو سره احرام وتړي او ور څخه تیر نشي، ځکه چه پرته له احرام نه ور څخه تیریدل حرام دي کله یي چه د حج او عمري قصد کړي وي، که څه هم د هغه تیریدل پر دغو ځایونو د ځمکي د لاري نه وي او که د هوا د لاري نه وي، ځکه د رسول الله ﷺ وینا په دي برخه کي عامه ده، رسول الله ﷺ فرمایي: «هن لهن ولمن أتى عليهن من غير أهلهن ممن أراد الحج والعمرة» د احرام د ټولو دغه ځایونه د دوي لپاره هم دي او د هغو لپاره هم کوم چه د حج او عمري کولو قصد ولري او په دغو ځایونو تیریږي.

لکن درسته داده چه که څوك د حج او عمري په نیت مکي ته تلل غواړي نو طیاري ته تر ختلو د مخه به غسل

وکړي کله چه میقات ته نیژدې شو نو لنگ او څادر به واغوندي، که وخت زیات ؤ د عمري لپاره به تلبیه ووایي او که نه، نو د حج لپاره، او که یو څوك میقات ته تر رسیدو د مخه لنگ او څادر واغوندي نو پروا نلري، لکن تلبیه به هغه وخت وایي کله چه میقات ته نیژدې شي، نو په دغه صورت کي به بیا ځان د حج په مناسکو کي داخله وي، ځکه پیغمبر ﷺ یواځي د میقات څخه احرام تړلي، نو په امت لازمه ده چه د دین په ټولو شیانو کي په هغه پسي اقتداء وکړي.

الله فرمایي: ﴿**لقد كان لكم في رسول الله أسوة حسنة**﴾

[الأحزاب: آیت ۲۱]

ژباړه: «خامخا په تحقیق دي تاسي ته (اي ویرونکیو) په (کار د) رسول الله کښې اقتداء غوره نیکه د پاره».

بل دا چه رسول الله ﷺ د حجة الوداع پر وخت وویل: «خذوا عني مناسككم». له ما څخه مو د حج مناسك دزواخليء او زده یي کړي.

او هغه څوك چه مكي ته ځي د حج او عمري قصد يي نه وي نو په هغه احرام تړل نشته، ځكه چه رسول الله ﷺ لكه چه د فتحي په كال مكي ته راغي نو احرام يي نه ؤ تړلي، بلكه يواځي جگړه ئيز خول يي په سر كړي وو او مكي ته داخل شو، او دغه وخت يي د حج او عمري نيت نه ؤ كړي بلكه د مكي د فتحي نيت كړي.

او هغه كسان چه دغو ميقاتونو ته نيژدي وسيږي لكه د جدي، ام السلم، بحره، شرائع، بدر، مستورة، او داسي نور، په هغوي دا لازمه نه ده چه دغه مواقيتو ته ولاړ شي، بلكه د هغه ميقات د هغه خپل مسكن دي، او كه هغه د ميقات نه بهر بل مسكن ولري نو اختيار لري چه د ميقات نه احرام تړي او كه د هماغه مسكن څخه، ځكه د رسول الله ﷺ وينا په دي برخه كي عامه ده په حديث د ابن عباس كي راغلي: (ومن كان دون ذلك فمحله من أهله حتى أهل مكه يحلون من مكة)

(رواه البخاري ومسلم)

يعني: او كه څوك دغو مواقيتو ته نيږدي وي نو د هغه

خپل ځاي بعينه د احرام تړلو ځاي دي حتى اهل مكه به د مكي څخه احرام تړي.

لكه كه څوك د عمري اراده ولري او دي په حرم كي وي نو بايد د حرم څخه ووځي او د عمري احرام وتړي، حكه كله چه بي بي عائشي رضي الله عنها د رسول الله ﷺ څخه د عمري غوښتنه وكړه نو د هغي ورور عبد الرحمن ته يي وويل تر څو له هغي سره د حِلْ د زمكي په لور ووځي او له هغه ځاي حخه احرام وتړي ، دا د دي دليل دي چه عمره كونكي به د حرم څخه احرام نه تړي، او دا حديث د ابن عباس رضي الله عنه د وړاندويني حدث مخصص دي، او په دي دلالت كوي چه مراد د رسول الله ﷺ په دي وينا سره چه أهل مكه به د مكي څخه احرام تړي احرام د حج دي؛ ځكه كه چهرته د عمري احرام جائز واي نو خپلي بي بي ته به يي اجازه وركړي واي او د ولتو امر به يي نه ورته كاوه، او دا څرگنده خبره ده او همدغه د جمهورو علماوو نظر هم دي، او دا احتياطي خبره هم ده ځكه په دي كي عمل په دواړو حديثونو راځي.

او دا چه ځيني خلك د حج څخه وروسته تنعيم او جعراني ته ځي احرامونه تړي او ډيري عمري كوي، هيڅ دليل پري نشته بلكه دلايل په دي برخه كي دي چه پرينبودل يي غوره دي.

څكه رسول الله ﷺ او د هغه ملگرو د حج څخه د فارغ كيدو نه وروسته عمري نه دي كړي، او دا چه بي بي عائشي رضي الله عنها د تنعيم څخه د عمري احرام وتاړه علت يي دا وو چه هغي د حيض له كبله عمره ونكړي شوه، نو هغي د رسول الله ﷺ څخه وغوښتل تر څو د هغي عمري په بدل كي بله عمره وكړي نو هغي ته دوه عمري تر لاسه شوي.

او كه څوك د عائشي رضي الله عنها په څير وي نو پروا نلري چه كه بله عمره وكړي، او شك نشته چه د حجاجو د زياتو عمرو له كبله ازدحام او هجوم جوړيږي او هغه د حوادثو سبب گرځي، او د رسول الله ﷺ د لارښوونو څخه مخالفت هم دي.

## هغه څوك چه د حج د میاشتو څخه پرته په نورو میاشتو کي میقات ته ورسیږي:

باید پوه شي چه میقات ته رسیدونکي دوه حالته لري:

لومړي: دا چه میقات ته د حج له میاشتو څخه رومبيء ورسیږي لکه په شعبان یا رمضان کښي (د احرام تړلو ځاي ) ته ورسیږي نو د ده لپاره سنت ده چه د عمري لپاره به احرام وتړي په زړه کي به نیت وکړي او په ژبه ووايي: لبیك عمرة، یا أللهم لبیك عمرة، بیا به د رسول الله ﷺ تلبیه ووايي: «لبیك اللهم لبیك ، لبیك لا شریك لك لبیك، إن الحمد والنعمة لك والملك لا شریك لك» تلبیه به زیاته وايي او ذکر به کوي، تر دي چه بیت الله ته ورسیږي نو کله چه ورسیږي تلبیه به بنده کړي د بیت الله څخه به اوه گردشه طواف وکړي، بیا به د مقام ابراهیم شاته دوه رکعته لمونځ وکړي، بیا به د صفا او مروه خواته

وځي او د صفا او مروه تر مینځ به اوه ګردشه طواف وکړي، بیا به سر وخروي یا به یي لنډ کړي، په دې ترتیب به د هغه عمره سرته ورسیږي او هر څه ورته حلال شو.

دویم: دا چه د حج په میاشتو یعني شوال، ذو القعده، او لومړني لس ورځي د ذو الحجي کي میقات ته ورسیږي نو دي کولاي شي چه په دغو دریو شیانو کي یو ځانته غوره کړي.

١) یواځي حج.

٢) یواځي عمره.

٣) حج سره له عمري.

څکه رسول الله ﷺ کله چه د حجة الوداع پر وخت د ذو القعدي په میاشت کي میقات ته ورسیده نو صحابو ته یي د دغو دري ډوله حجونو په اره اختیار ورکړ، لکن سنت طریقه داده چه که چا سره هدیه - د قرباني حلاله نوي نو د عمري احرام به وتړي څکه پیغمبر ﷺ خپلو

صحابو ته کله چه مکي ته نیږدي شول امر وکړ تر څو خپل احرامونه د عمري لپاره وتړي او هغوي ته یي په دي ټینګار وکړ، نو صحابه وو د هغه امر پر ځاي کړ، طوافونه یي وکړل او سعي یي وکړي او بیا یي ځانونه حلال کړل، مګر هغه څوك چه هدیه یي له ځانه سره درلوده نو پیغمبر علیه الصلاة والسلام ورته وفرمایل تر څو د اختر ورځي پوري په احرام کي پاتي شي، او هغه چا چه له ځان سره هدیه بیولي وي د هغه لپاره سنت داده چه د حج او عمري لپاره یو ځاي احرام وتړي، ځکه پیغمبر علیه الصلاة والسلام دا کار کړي وو، او کومو صحابه وو چه هدیي لیږلي وي هغوي ته یي هم امر وکړ تر څو حج او عمره سره یو ځاي کړي، او که هغه څوك چه هدیه یي لیږلي وي او یواځي د حج لپاره یي احرام تړلي وي نو دي به هم د حاجي قارن په څیر تر اختره پوري په احرام کي پاتي کیږي.

که یو محرم ته دمناسکو د ادا کولو پر وخت د ناروغي

يا د دښمن له کبله ويره پيدا شي نو مستحبه ده چه بايد د احـرام پرموخت دا الفـاظ ووايي: (فـإن حـبـسني حـابس فـمحلي حـيث حـبـستني) کـه څـه خنډ او مـانع زمـا په وړاندې پيدا شو نو زما د حلالي ځاي به هماغه وي چهرته بند کړم شوم. څکه ضباغة بنت الزبير رسول الله ﷺ ته وويل: زه د حج اراده لرم خـو مـاته څـه شکايت دي، نو رسـول الله ﷺ ورته وويل: «حـجي واشـترطي أن مـحلي حيث حبستني» متفق عليه. حج وکړه او دا شرط ولګوه چه زمـا د حـلالي ځـاي به هـمـاغـه وي چهـرته چه مـاته د مناسکو د ادا کولو په وړاندې خنډ او مانع را مخ ته شي.

او د دې شرط ګټه دا ده چه کله محرم ته د مناسکو د سـرته رسـولو په دوران کي څـه مـانع را مـينځ ته شي نو کـولاي شي په هـمـاغـه ځـاي کي ځـان حـلال کـړي او دم (وينه) هم پرې نشته.

# د کوچني د حج حکم

د وړو کي هلك او وړې جنۍ حج صحيح کيږي ځکه په صحيح مسلم کي له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دي چه يوې ښځې رسول الله ﷺ ته يو هلکي ور پورته کړ او ويويل:

يا رسول الله آيا د ده لپاره حج شته؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «نعم ولك أجر» هو او ستا لپاره په دي کي اجر دي. په صحيح البخاري کي له سائب بن يزيد څخه روايت نقل دي فرمايي چه: «پر ما حج وکړاي شو په داسي حال کي چه زه اوه کلن ماشوم وم».

لکن د ماشوم او ماشومي لپاره دغه حج د اسلامي حجونو په زمره کي چه فرض دي نشي ګڼل کيداې.

دغه راز د مريي او وينځي حج صحيح دي خو د فرضي څخه نه ګڼل کيږي، ځکه د ابن عباس رضي الله عنه د حديث څخه دا ثابتيږي چه رسول الله ﷺ فرمايلي:

«أيما صبي حج ثم بلغ الحنث فعليه أن يحج حجة أخرى، وأيما عبد حج ثم اعتق فعليه حجةً أخرى».

(أخرجه ابن أبي شيبه والبيهقي باسناد حسن).

كه كوم يو هلك حج وكړي او بيا بلوغ ته ورسيږي نو بل حج پرې واجب دي، دغه راز كه كوم مريي حج وكړي او بيا آزاد كړای شي نو بل حج پرې لازم دي.

بيا كه هلك تميز نشو كولاى نو د هغه ولي به د هغه لپاره د احرام نيت وكړي او كنډل شوي جامي به ترې وباسي او د هغه لپاره به تلبيه ووايي په دي ترتيب به دغه هلك محرم شي، نو دي به ژغورلي شي له هر هغه څه چه غيږ محرم ور ځخه ځان ژغوري، او په همدي دول وړوكي جيني چه تميز نشي كولاى نو د هغي ولي به د هغي لپاره د احرام نيت وكړي او تلبيه به ووايي چه په دي ترتيب به هغه محرمه شي، او دا به هم ژغورلي شي له هر هغه څه څخه غيږه محرمه ښځه ور ځخه ځان ژغورني پكار ده چه د

دغه هلك او جيني بدنونه او جامي به د طواف په حال كي سپيځلي وي ځكه طواف لكه لمونځ داسي دي او د لمانځه لپاره پاكوالي شرط دي.

او كه هلك او جيني تميز كولاي شو، نو د خپلو وليانو په اجازه به احرام وتړي، او د احرام په حالت كي به هغه څه كوي چه يو غټ محرم يي كوي، ولي عبارت د هغوي د پلار مور يا بل چا څخه دي، ولي به د دوي لپاره هر هغه كار كوي چه دوي يي د كولو توان نه لري، لكه د جمرو ويشتل او داسي نور، البته نور مناسك لكه په عرفات ودريدل، مزدلفه او منى كي شپي كول، طواف او سعي به په خپله كوي، كه طواف او سعي يي نشوه كولاي نو دوي په غير يا بل څه كي پورته كړاي شي، ... طواف او سعي به پري وكړاي شي او غوره دا ده چه د ماشومانو او وليانو طوافونه او سعي به يو ځاي نه وي بلكه ځانته ځانته به وي، يعني ولي بيا د ځان لپاره مستقل طواف او سعي

کوي ځکه چه په عبادت کي احتیاط پکار وي، او تر څو په دې حدیث عمل هم راشي چه فرمایي:

«دع ما یریبك إلی ما لا یریبك» یعني هغه څه پرېږده چه تا په شك کي غورځوي، د هغه څه په نسبت چه تا په شك کي نه غورځوي.

او که دغه ولي خپل طواف او سعي له دغه ماشوم سره په نیت کي شریك کړي، دا هم بنا په صحیح قول روا دي ځکه رسول الله ﷺ هغي ښځي ته چه د خپل ماشوم د حج په رابطه یي له هغه څخه وپوستل امر ونکړ چه د هغه لپاره بیل طواف وکړه، که واجب وایي نو خامخا به به یي ورته بیان کړي واي.

ماشومانو ته چه د تمیز څښتنان وي امر کیږي تر څو ځانونه د طواف څخه تر مخه د ناپاکیو څخه پاك کړي، د ماشومانو لپاره احرام تړل پر ولي واجب نه دي، بلکه نفل دي، که ویي کړي نو پکي اجر دي، او که نه نو هیڅ حرج پري نشته.

**هغه څه چه یو محرم به تري ځان ساتي او هغه څه چه کول یې ورته جائز دي:**

١ – محرم ته که نارینه وي او که زنانه، روا نه ده چه د احرام تړلو څخه وروسته خپل ویښتان یا نوکان واخلي او یا خوشبویي ولګوي، او په ځانګړي توګه نارینه وو ته روا نه ده چه ګنډل شوي جامې واغوندي، یا موزي او جرابي پښبو کړي، مګر دا چه کله لنګ تر لاسه نکړي نو کولای شي چه پر توګ هم واغوندي دغه راز که چپل پیدا نکړي نو کولای شي چه موزي پریکولو څخه په پښبو کړي.

په صحیحینو کي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت نقل دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل:

(من لم یجد نعلین فلیلبس الخفین ومن لم یجد إزاراً فلیلبس السراویل) که چا چپل پښي تر لاسه نکړي نو موزي دي په پښبو کړي دغه راز که څوك لنګ پیدا

نکړي نو پر توګ دي واغوندي.

او هغه چه د ابن عمر په حديث کي راغلي دي چه موزي به پري کوي که پښو کولو ته يي اړتيا پيښه شوه، نو هغه منسوخ دي. ځکه رسول الله ﷺ د پري کولو حکم په مدينه کي کړي وو، بيا کله يي چه په عرفات کي خطبه ورکوله نو د موزو د پښو کولو اجازه يي ورکړه او د پريکولو حکم يي ونکړ، او دغي خطبي ته هغه ځکه حاضر ؤ چه خپل ځواب يي په مدينه کي نه ؤ اوريدلي او تأخير په بيان کي د وخت د حاجت نه وروسته روا نه دي، لکه په علم اصول حديث او اصول فقه کي ذکر دي، نو په دي سره نسخ د امر په پريکولو د موزو سره ثابتيري، او که پريکول يي واجب واي نو خامخا به رسول الله ﷺ د هغي وضاحت کړي واي، (والله أعلم).

٢ - محرم کولاي شي هغه موزي چه ښنګرونه ښنکته وي

په پښو کړي ځکه هغه پښې داسي دي.
۳ – محرم کولاي شي خپل لنګ په تار یا بل څه سره وتړي ځکه کوم دلیل د هغې په منع کي نه دي راغلي.
٤ – دغه راز محرم کولاي شي غسل وکړي خپل سر ووینځي او یا یې په کراره سره وګروي، که له سر څخه یې پریوتل نو پروا نلري.
٥ – ښځه نشي کولاي د احرام په صورت کي د خپل مخ لپاره ګنډل شوي څیز لکه چادري یا نقاب واغوندي، یا د ستاني په لاسو کړي، ځکه رسول الله ﷺ فرمایي: «لا تنتقب المرأة ولا تلبس القفازين» رواه البخاري . ښځه په نقاب او دستاني نه استعمالوي.
٦ – نور ښځه کولاي شي ګنډل شوي جامي واغوندي موزي او جرابي په پښو کړي.
۷ – دغه راز ښځه کولاي شي خپل ټکري د اړتیا په

وخت په خپل مخ را ځورند کړي که ټکري د هغي پر مخ هم ولګيـد نو څـه پري نشـتـه، ځکه د بي بي عائشي رضي الله عنها حديث دي چه:

سپاره به پر موږ تيريدل او موږ به د رسول الله ﷺ په خوا کي ؤ، کله به چه هغوي موږ ته را نيژدي شول نو له موږ څخه کومي يوي خپل پروني له سر څخه په خپل مخ راښکته کړ، او کله به چه تير شول نو بيرته به مو خپل مخونه لوڅ کړل.

دغه راز پروا نلري که خپل لاسونه په جامه يا بل څه پټه کړي او دا پري لازمه ده تر څو د پرديو نارينه وو په وړاندي خپل مخ اولاسونه پټ کړي، ځکه هغه عورت دي لکه څنګه چه الله جل جلاله فرمايي:

﴿ولا يبدين زينتهن إلا لبعولتهن﴾

[النور: آيت رقم ٣١]

ژباړه: «او نه دي ښکاره وي زينت سايست (او ځاي

د سایست ) خپل ( هیڅ ته ) مګر د پاره د میړونو ( خاوندانو ) خپلو ته ».

او دې کې شك نشته چه مخ او لاسونه تر ټولو غټ زینت او بیا په تیره مخ د ښکلا لوی مرکز دی، او الله تعالی فرمایي : ﴿ **وإذا سألتموهن متاعًا فاسألوهن من وراء حجاب ذلكم أطهر لقلوبكم وقلوبهن** ﴾

[ الأحزاب : آیت ٥٣ ]

ژباړه : « او کله چه غواړئ تاسي له دغو ( مطهراتو ازواجو ) څخه د کوم متاع کار کوم څیز، پس غواړي هغه له دوی نه د باندي د پردې دغه ( غوښتل د باندي د پردې ) د تاسي دیر پاك ساتونکي دي د زړونو ستاسي او ( ډیر پاك ساتونکي دي ) د زړونو د دوی ».

او هر چه ځیني ښځي په عادي ډول د ټکري نه لاندي پټي تړي تر څو هغه له مخ څخه پورته کړي نو هغه په شریعت کي کوم اصل نه لري که وای نو رسول الله ﷺ به خپل امت ته بیان کړي وای.

۸ – محرم سړي او ښځه کولای شي خپلې د احرام جامې ووینځي او بدلې يې کړي.

۹ – سړي نشي کولاي په زعفران یا ګل اودس رنګ کړ شوي جامې واغونډي ځکه رسول الله ﷺ په حدیث د ابن عمر کې له دې څخه منع کړې.

۱۰ – په محرم لازمه ده تر څو له ښځو سره کوروالي، بدکاري، او جګړې پرېږدي ځکه الله جل جلاله فرمايي: ﴿ **الحج أشهر معلومات فمن فرض فيهن الحج فلا رفث ولا فسوق ولا جدال في الحج** ﴾

[ البقرة: آيت ۱۹۷ ]

ژباړه: «حج (څو) مياشتې معلومې دي نو هر چا چه فرض کړ (په خپل ځان) په دې مياشتو کښې حج نو نه دي کوي جماع (او نه دواعي د هغې) او نه ګناهونه او نه جګړې په (ورځو) د حج کښې».

او دغه راز رسول الله ﷺ فرمايي: «من حج فلم يرفث ولم يفسق رجع كيوم ولدته أمه».

«څوك چه د رفث او فسق څخه پاك حج وكړي نو داسي به پاك شي لكه لومړي چه د مور څخه پيدا شوي وي. رفث جماع بدو خبرو او بدو كارونو ته وايي.

او جدال چتي جګړو ته وايي، او هغه جدال چه د حق د اظهار او د باطل د رد لپاره وي هغه پروا نلري بلكه الله د هغي په باب يي امر كړي فرمايي: ﴿ **أدع إلى سبيل ربك بالحكمة والموعظة الحسنة وجادلهم بالتي هي أحسن** ﴾.

[النحل: آيت ١٢٥]

ژباړه: «بلنه كوه (اي محمده! خلقو ته) لياري د رب خپل ته (چه توحيد او اسلام دي) په حكمت (محكمي خبري د قرآن) سره او به موعظه (پند) نيك سره په ښه ډول (طريقه) او مباحثه كوه له دوي سره په هغي (طريقي سره) چه هغه ډير ښه وي».

۱۱ – محرم سړي نشي کولاي چه سر په څه شي پټ کړي او يا مخ پټ کړي، ځکه رسول الله ﷺ د هغه سړي په رابطه چه له خپلي سوارلي څخه وغورځيده وفرمايل:

(اغسلوا بماء وسدر وكفنوه في ثوبه ولا تخمروا رأسه ووجهه فإنه يبعث يوم القيٰمة ملبيًا). متفق عليه

دي په اوبو او د شوو په پاڼو ووينځي او خپل جامي يي كفن كړي، سر او مخ يي مه پټوي ځكه دي به د قيامت په ورځ په داسي حال كي پورته كيږي چه تلبيه به وايي.

او كه يو څوك د موټر يا د چتري له سوري څخه استفاده كوي نو پروا نلري، لكه څنگه چه په صحيح حديث كي راغلي دي چه د جمرة العقبة د ويشتلو څخه په رسول الله ﷺ ته سوري جوړ كړ شو، او په نمره كي به دده لپاره قبه جوړه كړي شوه او د عرفي په

ورځ به تر لمر پریوتو پوري ورلاندي ناست وُو.

۱۲ – دغه راز محرم سړي وي او که ښځه، نشي کولای ښکار وکړي او یا بل چاته لارښوونه وکړي، دغه راز د نکاح تړل، جماع کول، له ښځو سره په شهوت سره مباشرت کول دا ټول ناروا دي.

ځکه د عثمان رضي الله عنه په حدیث کي راغلي دي رسول الله ﷺ فرمایي: «لا یَنْکح المحرم ولا یُنکح ولا یخطب» رواه مسلم.

محرم سړي به نکاح نکوي، او نه به څوك چا ته په نکاح ورکوي، او نه به کومه ښځه د ځان یا د بل چا لپاره غواړي.

هو! که یو محرم نه هیر وي ګنډل شوي جامي واغوندي، یا سرپټ کړي یا خوشبویي ولګوي، او یا دا کار په ناپوهي سره وکړي، نو فدیه پري نشته، او کله چه ور په یاد شي او پوه شي نو لیري کوي به یي،

دغه رازکه یو ځوك سر کل کړي او یا یو څه ویښتان واخلي او یا نوکان لنډ کړي خو دا په داسي حال کي چه هیر یي وي، او یا یي په ناپوهي سره وکړي نو هیڅ هم پري نشته.

۱۳ – دغه راز په مسلمان باندي که ښځه وي او که سړي محرم وي او که نه وي، حرامه ده چه په حرم کي ښکار وکړي او یا له بل چا سره په دي برخه کي مرسته وکړي، دغه راز له خپل ځای څخه د ښکار شړل، او د حرم دونو پریکول، او شني گیاه پریکول، او د ورك را اخیستل – مگر د تعریف کوونکي لپاره – دا ټول حرام دي ځکه رسول الله ﷺ فرمایي:

«بي له شکه دغه ښار (یعني مکه) د خدای جل جلاله په حرمت سره تر قیامته پوري حرامه ده، وني به یي نشي پریکولي – ښکار به یي نشي شړلي، او د هغي گیاه به نشي گډودولي او د ورك را اخیستل یي

روا نه دي مگر که څوك يي تعريف وکړي».

منی او مزدلفه د حرم څخه گڼل کيږي، او عرفه په حرم کي نه شميرل کيږي.

## هغه څه چه يو حاجي يي مکي ته د ورننوتلو په صورت کي کوي:

کله چه محرم مکي ته ورسيږي نو مستحب ده چه مکي ته تر ننوتلو د مخه غسل وکړي ځکه رسول الله ﷺ همداسي کړي وو، او کله چه مسجد حرام ته ورسيږي نو د ده لپاره سنت دي چه بايد ښي پښه مخکي کړي او دا الفاظ ووايي: «بسم الله والصلاة والسلام على رسول الله، أعوذ بالله العظيم وبوجهه الكريم وسلطانه القديم من الشيطان الرجيم، اللهم افتح لي أبواب رحمتك» او دا تر مسجد حرام پوري خاص نه ده بلکه هر مسجد ته د ننوتلو په صورت کي به دا دعا وايي.

نو کله چه کعبي ته ورسيږي تلبيه به بنده کړي بيا به

د حجر اسود لورته قصد وکړي د حجر أسود استلام به وکړي او ښکل به يې کړي کـه چاته څه تکليف نه و، گوندي بيا په لاس يا امسا سره د حجر أسود استلام کفايت، او که دا هم ممکنه نه ده نو بيا اشاره هم کفايت کوي، د حجر اسود د استلام په وخت کي به دا الفاظ وايي: «بسم الله والله أكبر» او په هغه څه سره چه اشاره کوي هغه به نه ښکلوي، د طواف په دوران کي بيت الله چپ اړخ ته کړي، د طواف د پيل کولو په وخت کي د دي الفاظو ويل غوره دي: «اللهم إيماناً بك وتصديقًا بكتابك ووفاء بعهدك وإتباعًا لسنة نبيك محمد ﷺ»

ځکه دغه الفاظ د رسول الله ﷺ څخه روايت شوي دي.

طواف به اوه گردشه کوي، په لومړنيو دريو گرد شونو کي به رمل (چالاکــه تلل) کــوي او پاتي نورو څلورو گردشونو کي به عادي توگه تلل کوي، طواف به له حجر

اسود څخه پیل او شروع کوي او په حجر اسود به یې پای ته رسوي.

او مستحبه ده چه د دي طواف په ټولو ګردشونو کښي اضطباع وکړي معنی دا چه د څادر مینځ به د ښي اوري (ولي) لاندي کري او طرفونه به یې په چپ طرف غاره واچوي، مثلاً که شك یې شو چه دري طوافونه مي وکړل او که څلور؟ نو دري به یې وګڼي او همدغه شان به په سعي کي هم کوي.

د طواف څخه وروسته به څادر په غاړه کي واچوي، او طرفونه به یې ښکته په سینه ځوړند کړي، بیا دوه رکعته لمونځ وکړي، او هغه څه چه ښځي ورته باید په طواف کي ځان وساتي هغه دا چه له ړول او سینګار او خوشبویي لګولو څخه په کلکه ډډه کوي، په هغوي سترکول لازم دي، دغه راز پرته له طواف څخه به هم ښځي له بي ځایه تجمل، ښکلا ښکاره کولو، له نارینه وو څخه د خلطیت

نه به دذه کوي، ځکه ښځه عورت او فتنه ده، او د ښځي مخ د زينت تر ټولو څرگند مرکز دي، نو پرته له خپلو محارمو څخه به يي بل چا ته نه څرگندوي، الله فرمايي:

﴿ولا يبدين زينتهن إلا لبعولتهن﴾ الآية

[النور: آيت ۳۱]

ژباړه: او ښځي به خپله ښکلا يواځي خپلو ميړونو ته ښکاره کوي، نو د حجر اسود د ښکلولو پر وخت ښځو ته روا نه ده چه خپل مخونه ښکاره کړي کله چه نارينه ورته گوري کله چه د حجر اسود د ښکلو او استلام چانس په لاس نه ورځي، نو له نارينه و سره به په ازدحام نه ورگډيري بلکه د هغوي شاته دي طواف کوي، او دا د دوي لپاره غوره دي، او پرته له همدغه لومړني طواف څخه په نورو طوافونو کي به رمل او اضطباع نکوي، او ښځي به بيخي رمل (پهلواني) اضطباع (څادر په خاص کيفيت اچول) نه کوي ځکه پيغمبر عليه الصلاة والسلام يواځي په لومړني طواف کي کله چه مکي ته راغي رمل او اضطباع

وکړه.

حاجي باید د طواف په حالت له هر ډول بې اودسیو او جنابتونو څخه پاك وي او مستحب ده چه ذکر او عاجزي او تواضع به زیاته کوي، دعا به ډیره کوي، که د قرآن تلاوت يي پکي وکړ، نو دا هم ښه خبره ده به دي طواف او دغه راز نورو طوافونو او سعیو کي د کوم مخصوص ذکر او دعا لوستل نشته، دا چه ځیني خلك ځانګړي ذکرونه او ځانګړي دعاګاني لولي کوم أصل نلري، کله چه رکن یماني ته ورسیږي نو په ښي لاس سره به يي استلام وکړي او وبه وایي: «بسم الله والله أكبر» او ښکلوي به يي نه، او که استلام يي سخت ؤ، نو پري به يي دي او خپل طواف ته به ادامه ورکړي او اشاره به نکوي او نه به د هغه په برابري تکبیر وایي، ځکه دا د پیغمبر علیه الصلاة والسلام نه ثابت نه دي، او د رکن یماني او حجر اسود تر مینځ به دا دعا لولي: ﴿**ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار**﴾ الآية [البقرة: آیت ۲۰۱]

او کله چه حجر اسود ته رسيږي نو استلام به کوي او ښکلوي به يې او الله اکبر به وايي، او که استلام او ښکلول يې ممکن نه، ؤ نو د حجر اسود په برابري ورته اشاره وکړي او الله اکبر به ووايي طواف که د زمزم او مقام ابراهيم شاته وشي نو پروا نلري، په ځانګړي توګه د ازدحام په صورت کي، ټول مسجد د طواف لپاره وړ دي.

د مسجد په برنډو کي هم طواف کول جائز دي لکه غوره داده چه کعبي ته نيژدي طواف وشي کله چه امکان ولري.

نو کله چه د طواف څخه فارغ شي، نو د مقام ابراهيم شاته به دوه رکعته لمونځ وکړي، که ازدحام نه ؤ ګوندي د مسجد په هره برخه کي يي وکړي پروا نلري او سنت طريقه داده چه په دغو دوو رکعتونو کي د ﴿**قل يا أيها الكافرون**﴾ أو ﴿**قل هو الله أحد**﴾ سورتونه ولولي. بيا په ښي لاس سره د حجر اسود استلام وکړي. بيا به د صفا په دروازه د صفا غونډي ته ور پورته شي او دا آيت ولولي:

﴿إن الصفا والمروة من شعائر الله﴾ الآية

[البقرة: ١٥٨]

او مستحب ده چه مخ په قبله به ودریږي او الحمد الله او الله أكبر به ووايي او بيا به دا الفاظ ووايي: (لا إله إلا الله والله أكبر لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد يحيي ويميت وهو على كل شيء قدير، لا إله إلا الله وحده، أنجز وعده ونصر عبده وهزم الأحزاب وحده).

بيا به لاسونه پورته کړي او هره دعا چه ورته آسانه وي هغه به ووايي او دغه پورتني ذکر او دعاګاني به دري دري ځله تکراروي، بيا به د صفا څخه را ښکته شي، او د مروه لورته به ولاړ شي، نو سړي به په تلو کي تر دويمي نښني پوري څغاسته او رمل کوي، او ښځه به دا کار نکوي، ځکه هغه عورت دي هغه به عادي تلل کوي، بيا به مروه ته وخيژي او هغه څه به ووايي چه په صفا کي يي لوستي ؤ بيا به راکوز شي، او په کوم ځاي کي چه عادي

تلل وي هلته به تلل کوي، او په کوم ځاي کي ځغاسته او رمل وي هلته به ځغاسته کوي. په دي ترتیب به دا کار اوه ځله وکړي، تلل یې یوه سعیه شوه او راتلل یې بله سعي شوه ځکه رسول الله ﷺ دا کار کړي ؤ هغه وفرمایل: «خذوا عني مناسککم» او مستحب ده چه په سعي کي به ذکر او دعا ډیره په کثرت سره وایي، باید به اوداسه کي وي، که بي اودسه یې سعي وکړه هم روا ده، په دي ترتیب که ښځه د سعي په حالت کي حیضه یا نفاسه شي نو سعي صحیح ده ځکه چه اودس د سعي لپاره مستحب دي، نو کله یې چه سعي بشپړ شوه نو د سر ویښته به کل یا لنډ کړي، او د نارینه لپاره خریول (کلول) غوره دي که په عمره کي یې لنډ کړه او کلول یې د حج لپاره بریښودل نو بیا هم ښه کار دي.

کله چه مکي ته په داسي حال کي را ورسیږي چه د حج ورځي پري نیژدي راشي نو دویښتانو لنډول ورته غوره

دي تر څو باقي ويښته د حج نه د فارغيدو به صورت کي کل کړي،، ځکه رسول الله ﷺ هر کله چه له خپلو اصحابو سره مکي ته راغي، نو څلورم د ذو الحجي ؤ امر يي وکړ چه که چا هديه نوي ليږلي نو ويښته دي لنډ کړي او ځان دي حلال کړي، او د کلولو امر يي و نه کړ، او د ويښتانو په لنډولو کي دا خبره ضروري ده چه بايد د ټول سر ويښته لنډ کړي، او د ځينو ويښتو لنډول کفايت نکوي لکه څنګه د سر د يوي برخي کلول کفايت نکوي، او ښځه به د ټولو کوڅيو څخه د ګوتو د څو په په اندازه لږ لږ ويښته لنډ کړي، نو کله چه محرم دغه کارونه انجام کړي نو د هغه عمره بشپړه شوه «او هغه څه چه د احرام په نتيجه کښي وربانديي حرام وو ورته حلال شول او هغه څوك چه له ځان سره يي هديي بيولي وي، بايد تر هغه پوري په احرام کښي پاتي شي چه تر څو له حج او عمري دواړو څخه حلال شي».

مگر حاجي قارن او مفرد لپاره سنت ده چه احرام به تر عمري پوري فسخ کړي، او هغه څه به کوي چه يو متمتع حاجي يي کوي مگر دا چه هديه يي ليږلي وي ځکه رسول الله ﷺ اصحابو ته په دي امر کړي ؤ او ويلي ؤ چه: «که ما هديه نه واي ليږلي نو خامخا به مي له تاسو سره يو ځاي ځان حلال کړي واي».

او کله چه يوه ښځه د عمري د احرام څخه وروسته حيضه يا نفاسه شي نو د پاکيدو تر وخت پوري به نه طواف کوي او نه سعي کوي. بيا چه کله پاکه شي نو طواف او سعي به وکړي، د سر د ويښتو څوکي به واخلي نو په دي سره د هغي عمره پوره شوه، او که تر يوم الترويه (اتمه د ذو الحجي) پوري پاکه نشوه نو په کوم ځاي کي چه وسيږي نو له هماغه ځاي څخه د حج لپاره احرام وتړي، او له خلکو سره به يو ځاي د منی لورته ووځي، په دي سره به هغه قارنه وگرځي څه چه حاجيان کوي دا به

يي هم كوي، نو كله چه پاكه شوه د بيت الله څخه به يو طواف وكړي، او يوه به سعي وكړي نو په دي ترتيب د هغي حج او عمره ادا شوه، ځكه بي بي عائشه رضي الله عنها له همداسي پيښي سره مخامخ شوي وه، نو رسول الله ﷺ ورته وويل: «كوه هغه څه چه يو حاجي يي كوي مگر د بيت الله طواف مكوه، تر څو چه پاكه شوي نه اوسيء».

(متفق عليه).

كله چه حيضه يا نفاسه د اختر په ورځ جمري وولي او ويښته لنډ كړي، نو هر څه ورته حلال شول مگر دا چه ميړه ته به نيژدي كيږي، تر څو حج يي بشپړ شوي نه وي، كله چه پاكه شوه طواف او سعي يي وكړه نو ميړه ته هم نيژدي كيداي شي.

**«د ذي الحجي په اتمه ورځ د حج احرام تړل او د منى په لوري روانيدل»**

كله چه د تروي ورځ اتم د ذو الحجي را ورسيږي، نو

حاجیان به د خپلو استوګنځایونو څخه د حج لپاره احرامونه وتړي ځکه د رسول الله ﷺ ملګرو په ابطح (نوم د ځای دي) کي استوګنه درلوده او رسول الله ﷺ په امر یي له همدي ځای څخه احرامونه وتړل، او دایي ورته و نه ویل چه بیت الله ته ورشي د هغه، یا د میزاب ( ناوي ) په خوا کي احرامونه وتړي، او دغه راز یي دا هم ورته و نه ویل چه منی ته د وتلو په صورت کي طواف وداع وکړي، که دا مشروع وای نو حتماً به یي ورته ویلي وای، ځکه خیر ټول د پیغمبر ﷺ او د أصحابو رضي الله عنهم په پیروي کي دي.

او مستحب ده چه حاجي به د حج د احرام لپاره غسل وکړي او خوشبویي به ولګوي، کله یي چه احرام وتاړه نو د ترویي په ورځ د غرمي نه مخکي به منی ته ولاړ شي، او د جمري عقبي تر ویشتلو پوري به تلبیه ډیره ډیره وایي، په منی کي د ماسپښین مازدیګر، ماښام، ماښخوتن، او سهار

لمونځونه وکړي، برته د ماښام او د سهار لمانځه څخه ټول لمونځونه په خپل وخت کي دوه رکعتي قصر کوي.

دلته د اهل مکه ؤ او غير اهل مکه ؤ تر مينځ توپير نشته ځکه رسول الله ﷺ د اهل مکه ؤ او غير أهل مکه ؤ سره په منى او عرفات او مزدلفه کي دوه رکعتي لمونځ کړي او د پوره لمونځ امر يي چاته نه دي کړي.

بيا د لمر ختلو څخه وروسته به حاجي د عرفي په ورځ عرفات ته ځي، او که ورته آسانه وه نو تر زواله پوري به د مسجد نمره سره پاتي شي، ځکه رسول الله ﷺ همداسي کړي ؤ.

د غرمي نه وروسته به د امام يا د هغه د نائب لپاره سنت ده چه د مقتضى الحال سره سم خلکو ته خطبه ووايي، له خطبي نه وروسته به د ماسپښين او مازديگر لمونځونه يو ځاي قصر وکړي په يو آذان او دوو اقامتونو سره، ځکه رسول الله ﷺ همداسي کړي ؤ.

بيا به خلك د عرفات په ډگر کي ودريږي او ټول

عرفات د ودريدلو ځاي دي، مګر د عرني کنده د ودريدلو ځاي نه دي، که امکان يي ؤ نو مخ به د قبلي او جبل الرحمة په لور کړي ګونډي يواځي مخ کول قبلي ته هم کافي دي، په دغه ځاي کي د حاجي لپاره مستحب ده چه په ذکر دعا او زاريو کي به نهايي کوښښ کوي، او د دعا په حال کي به لاسونه پورته کوي، که تلبيه يي وويل او يا يي د قرآن تلاوت وکړه نو ښه خبره ده، او سنت ده چه دا ذکر به زيات کوي:

(لا إله الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد يحيي ويميت وهو علي كل شيء قدير)

غوره د دعاګانو ښخه دعا د ورځي د عرفي ده او بيا تر ټولو غوره دعا هماغه ده چه ما ويلي او تر ما د مخه پيغمبرانو ويلي او هغه داده چه: (لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد يحيي ويميت وهو على كل شيء قدير».

پيغمبر عليه الصلاة والسلام فرمايلي: «خداي جل جلاله ته خو بني خبري ښلور دي:

«سبحان الله – الحمد الله – الله أكبر – لا إله إلا الله».

وكولاي شي دغه جامع ذكرونه او دعاگاني ولولي:

١) سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم.

٢) لا إله إلا أنت سبحانك إني كنت من الظالمين.

٣) لا إله إلا الله ولا نعبد إلا إياه له النعمة وله الفضل وله الثناء الحسن، لا إله إلا الله مخلصين له الدين ولو كره الكافرون.

٤) لا حول ولا قوة إلا بالله .

٥) ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار.

٦) اللهم أصلح لي ديني الذي هو عصمة أمري وأصلح لي دنياي التي فيها معاشي، وأصلح لي آخرتي التي فيها

معادي، واجعل الحياة زيادة لي في كل خير، والموت راحة لي من كل شر.

٧ ) أعوذ بالله من جهد البلاء ودرك الشقاء وسوء القضاء وشماتة الأعداء.

٨ ) اللهم إني أعوذ بك من الهم والحزن ومن العجز والكسل، ومن الجبن والبخل، ومن المأثم والمغرم ومن غلبة الدين وقهر الرجال، أعذو بك اللهم من البرص والجنون والجذام ومن سيء الأسقام.

٩ ) اللهم إني أسألك العفو والعافية في ديني ودنياي وأهلي ومالي.

١٠ ) اللهم استر عوراتي وآمن روعاتي واحفظني من بين يدي ومن خلفي وعن يميني وعن شمالي ومن فوقي، وأعوذ بعظمتك أن اغتال من تحتي.

١١ ) اللهم اغفر لي خطيئتي وجهلي وإسرافي في أمري وما أنت أعلم به مني.

١٢ ) اللهم اغفرلي جدي وهزلي وخطيئتي وعمدي وكل ذلك عندي.

١٣ ) اللهم اغفرلي ما قدمت وما أخرت وما أسررت وما أعلنت وما أنت أعلم به مني أنت المقدم وأنت المؤخر وأنت على كل شيء قدير .

١٤ ) اللهم إني أسألك الثبات في الأمر، والعزيمة على الرشد وأسألك شكر نعمتك وحسن عبادتك، وأسألك قلبًا سليمًا ولسانًا صادقًا، وأسألك من خير ما تعلم، وأعذوبك من شر ما تعلم واستغفرك لما تعلم إنك علام الغيوب.

١٥ ) اللهم رب النبي محمد عليه الصلاة والسلام، اغفرلي ذنبي واذهب غيظ قلبي وأعذني من مضلات الفتن ما ابقيتني.

١٦ ) اللهم رب السموات ورب الأرض ورب العرش العظيم ربنا ورب كل شيء فالق الحب والنوى منزل التوراة

والإنجيل والقرآن، أعوذ بك من شر كل شيء أنت آخذ بناصيته، أنت الأول فليس قبلك شيء، وأنت الآخر فليس بعدك شيء، وأنت الظاهر فليس فوقك شيء، وأنت الباطن فليس دونك شيء، اقض عني الدين وأغنني من الفقر.

١٧ ) اللهم أعط نفسي تقواها، وزكها أنت خير من زكها أنت وليها ومولاها، اللهم إني أعوذ بك من الجبن والهرم والبخل، وأعوذ بك من عذاب القبر.

١٨ ) اللهم لك أسلمت وبك آمنت، وعليك توكلت، وإليك أنبت، وبك خاصمت، أعوذ بك بعزتك أن تضلني لا إله إلا أنت. أنت الحي الذي لا يموت والجن والإنس يموتون.

١٩ ) اللهم إني أعوذ بك من علم لا ينفع، ومن قلب لا يخشع، ومن نفس لا تشبع، ومن دعوة لا يستجاب لها.

٢٠ ) اللهم جنبني منكرات الأخلاق والأعمال والأهواء والأدواء.

٢١ ) اللهم الهمني رشدي، وأعذني من شر نفسي.

٢٢ ) اللهم اكفني بحلالك عن حرامك وأغنني بفضلك عمن سواك.

٢٣ ) اللهم إني أسألك الهدى والتقى والعفاف والغنى.

٢٤ ) اللهم إني أسألك من الخير كله، عاجله وآجله ما علمت منه وما لم أعلم، وأعوذ بك من الشر كله عاجله وآجله ما علمت منه وما لم أعلم، وأسألك من خير ما سألك منه عبدك ونبيك محمد عليه الصلاة والسلام، وأعوذ بك من شر ما استعاذ منه عبدك ونبيك محمد عليه الصلاة والسلام.

٢٥ ) اللهم إني أسألك الجنة وما قرب إليها من قول أو عمل، وأعوذ بك من النار وما قرب إليها من قول أو عمل، وأسألك أن تجعل كل قضاء قضيته لي خيراً.

٢٦ ) لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد يحيي ويميت بيده الخير وهو على كل شيء قدير، سبحان الله والحمد لله ولا إله إلا الله والله أكبر ولا حول ولا قوة إلا بالله العظيم.

٢٧ ) اللهم صل على محمد، وعلى آل محمد، كما صليت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم إنك حميد مجيد، وبارك على محمد، وعلى آل محمد كما باركت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم إنك حميد مجيد.

٢٨ ) ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار.

په دغه ستر تم حاي كي د حاجي لپاره مستحب ده چه پورتني دعاگاني په مكرر ډول ووايي، په دعاگانو كي به ډيره خاكساري كوي او د خپل رب نه به د دنيا او آخرت ښيگني غواړي.

او رســـول الله ﷺ په دعــا دري ځله تکراره وله، او لازمه ده چه په هر کار کي د پیغمبر علیه الصلاة والسلام پسي اقتداء وشي.

مسلمان باید په دغه ستر تم ځای کي خپل رب ته ټیټ شي او د هغه په وړاندي عاجزي وکړي، د هغه رحمت او مغفرت ته امیدواره شي، او د هغه د عذاب څخه وویږي او له خپل ځان سره محاسبه وکړي، او په نصوح توبه وباسي، ځکه دا یوه ستره ورځ او لویه اجتماع ده په دغه ورځ ډیري غاړي له اور څخه آزادیږي، شیطان په دغه ورځ د بلي هري ورځي په نسبت ډیر خوار او ذلیل وي، ځکه دي په دغه ورځ گوري چه الله جل جلاله په خپلو بندگانو باندي څومره احسانات کوي.

په صحیح مسلم کي له بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «د بلي هري ورځي په نسبت د عرفات په ورځ الله جل جلاله خپل

بندګان د دوزخ د اور څخه آزادوي، او الله خپلو بندګانو ته نیژدي کیږي، بیا په دوي باندي د ملائکي په وړاندي فخر کوي او وايي دوي څه غواړي؟»

حجاج به په دغه تم ځاي کي تر لمر پریوتو پوري الله نه په عذر او زاریو کي مشغول وي، بیا چه کله لمر پریوځي، نو په پوره داډ سره به د مزدلفي لورته وخوځیري او تلبیه به زیاته وايي او په پراخه ځایونو کي په چالاکي ځي، ځکه دا کار پیغمبر ﷺ کړي او د لمر پریوتلو نه به مخکي حرکت نکوي، ځکه رسول الله ﷺ تر لمر پریوتلو پوري په عرفات ولاړ ؤ او ویویل: «راشيء او له ما څخه مو د حج مناسك در واخلي».

بیا چه کله دوي مزدلفي ته ورسیږي نو د ماښام دري رکعته او د ماسښخوتن دوه رکعته لمونځ به یو ځاي په یو أذان او دوه اقامته وکړي، که څه هم مزدلفي ته ماښام ورسیږي او که ماسښخوتن، او دا چه ځیني عام خلك په

مزدلفه کي د شیطانانو د ویشتلو لپاره وړې تیګې ټولوي او د هغې د مشروعیت عقیده لري، دا کوم اصل نلري، بلکه د مشعر الحرام نه تر منی پورې په هر ځای کي یې چه ټولوي صحیح ده، ځکه رسول الله ﷺ همداسې کړي ؤ.

د ځای تعین په دې کې نشته بلکه په منی کي هم صحیح ده، سنت داده چه په دغه ورځ به اوه وړې تیګې راټولي کړي، او جمره العقبه به پرې وولي، ځکه رسول الله ﷺ همداسې کړي ؤ.

او پاتې نورو دریو ورځو کي به د هرې ورځې لپاره یوویشت وړې تیګې ( ګیټکي ) راټولوي او درې واره جمرات به پرې ولي.

او د ګیټکیو پریوینځل مستحب نه دي ځکه دا رسول الله ﷺ او د هغه د صحابو ؤ څخه نقل شوي نه دي.

دغه شپه به حاجیان په مزدلفه کي تیروي، البته ضعیفان، زنانه او ماشومان کولای شي چه د شپې په

وروستي برخه کي منی ته ولاړ شي، ځکه بي بي عائشه او ام سلمه رضي الله عنهما په دي برخه کي روايت لري. اما د نورو حجاجو په باب دا تاکيد شوي چه دوي به د سهار لمونځونه په مزدلفه کي کوي، بيا به د مشعر الحرام سره ودريږي مخ به قبلي ته گرځوي، ذکر او دعاگاني به کوي تردي چه ښه رڼا شي.

په دعا کي به لاسونه پورته کوي، ټوله مزدلفه د ودريدو ځاي دي، لوړي او ژوري پدي کي شرط او ضروري نه دي، ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «زه دلته ودريږم خو مزدلفه ټوله د ودريدو ځاي دي» رواه مسلم.

بيا به حاجيان د لمر ختلو نه وړاندي منی ته ولاړ شي او په تلو کي به تلبيه زياته وايي، کله چه د محسر کندي ته ورسيږي، نو لږ به په خپلو تلو کي له چالاکي څخه کار واخلي.

نو کله چه منې ته ورسیږي تلبیه به د جمرة العقبة د ویشتلو په صورت کي بنده کړي، بیا به جمرة عقبه په اوو ګیټکیو سره پرلپسي وولي، د ویشتلو په صورت کي به لاس پورته کوي او تکبیر به وایي، او مستحبه داده چه دغه جمرات د بطن الوادي څخه په داسي حال کي وولي چه کعبه به یي چپ او منی به یي ښي ارخ ته راشي، ځکه رسول الله ﷺ همداسي کړي ؤ، او که له نورو خواو نه یي وولي نو دا هم روا دي، دا ضروري نه ده چه ګیټکي دي د ویشتلو په ځاي کي پاتي شي، بلکه شرط هغه ځاي ته د ګیټکیو رسول دي، که ګیټکي هلته ورسیږي او بیرته راوځي نو ظاهرا د اهل علمو په نزد روا ده، لکه امام نووي په دي باندي په شرح تهذیب کي تصریح کړي ده، او ګیټکي به د نخود د دانو څخه لږ غټي وي.

د جمرو (شیطانانو) د ویشتلو څخه وروسته به ولاړ شي او قرباني به وکړي او د حلالولو په وخت به دا الفاظ

ووايي: «بسم الله ألله أكبر اللهم هذا منك ولك» مخ په قبله به ودريږي، او سنت داده چه اوښ به په ولاړي په داسي حال کي حلالوي چه چپه پښه به يي تړلي وي، غويي او پسونه به په چپ اړخ حلالوي، او که خپله ذبحه پرته د قبلي څخه کومي بلي خواته وکړه نو ذبيحهء صحيح ده او ترك د سنتو يي وکړ، مخامخ کيدل د ذبحي په هر وخت قبلي ته سنت دي او واجب نه دي، او مستحب ده چه د خپلي مذبوحي څخه به خوراك کوي هديه کوي به يي او صدقه کوي به يي، ځکه الله پاك فرمايي:

﴿فكلوا وأطعموا البائس الفقير﴾ [الحج: آيت ۲۸]

ژباړه: «پس خوري تاسي له هغي (غوښي) څخه او خوري يي په بدحال فقير (محتاج)».

البته د حلالي وخت د اهل علمو په صحيح اقوالو کي د ايام التشريق د دريمي ورځي تر لمر پريوتلوي پوري دي چه ټولي څلور ورځي کيږي. بيا وروسته د هديي د ذبحه کولو څخه وروسته به سر کل کړي او يا به يي لنډ کړي. خو

خریول ( کلول ) یې غوره دي، ځکه پیغمبر ﷺ د سر خریونکو لپاره درې ځله د رحمت او مغفرت دعاګانې وکړې، او د لنډونکو لپاره یې یو ځل وکړې، او د سر د ویښتو د ځینو برخو لنډول کفایت نکوي، بلکه ټول ویښته به لنډوي، او ښځه به د هرې کوڅۍ څخه د ګوتو د څو په اندازه ویښته لنډوي.

له دې څخه وروسته محرم ته پرته له ښځو څخه د نیژدیکت نه نور هر څه روا دي، او دا تحلل ته لومړی تحلل ویل کیږي له دې تحلل څخه وروسته د حاجي لپاره خوشبویي استعمالول سنت دي، بیا به د طواف افاضه لپاره د مکې په لور حرکت وکړي ځکه بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي: «ما به د رسول الله ﷺ د احرام لپاره د هغه د احرام تړلو څخه تر مخه، او د هغه د ځان حلالو لپاره مخکې د طواف افاضه څخه خوشبويي برابروله».

(أخرجه البخاري ومسلم).

او دې طواف ته طواف افاضه او طواف زیارت هم ویل

کیږي، او دا یو رکن دي د ارکانو د حج څخه، پرته له دي څخه حج نشي پوره کیدلای، او همدغه مراد دي د الله تعالی په دي قول کي چه فرمایي: ﴿ثم لیقضوا تفثهم ولیوفوا نذورهم والیطوفوا بالبیت العتیق﴾

[الحج: آیت ۲۹]

ژباړه: «بیا دي لري کړي (جاجیان حاجتونه او) خیري خپل او پوره دي اداء کړي نذرونه خپل (او د حج واجبات) او طواف دي وکړي په هغه کور چه قدیم کریم دي».

بیا وروسته د دي طواف او د مقام ابراهیم شاته د دوه رکعته لمونځ کولو څخه وروسته به د صفا او مروه تر مینځ سعي وکړي په هغه صورت کي چه حاجي متمتع وي نو دا یي د حج سعي شوه او هغه لومړني یي د عمري سعي شوه.

د علماؤ د صحیح اقوالو په رڼا کي یوه سعي نه کافي کیږي، ځکه بي بي عائشه رضي الله عنها فرمایي: موږ د

رسول الله ﷺ سره ووتلو - نو اوړد حديث يي ذکر کړ چه په هغه کي رسول الله ﷺ وفرمايل: «که څوك له ځانه سره څه هديه ولري نو هغه دي د حج او عمري دواړو لپاره احرام وتړي بيا دي ځان نه حلالوي تر څو چه له دواړو څخه فارغه شوي نه وي» تر دي چه بي بي عائشه رضي الله عنها روايت کوي فرمايي چه: «نو طواف وکړ هغو کسانو چه د عمري لپاره يي احرام تړلي ؤ له بيت الله او صفا او مروه څخه.

نو د بل طواف نه د هغي مراد همدغه سعي ده، او چا چه ور څخه طواف افاضه مراد کړي نو هغوي تير وتلي، ځکه چه طواف افاضه خو د ټولو لپاره رکن دي او هغه دوي کړي، بلکه مراد په دي سره هغه څه دي چه حاجي متمتع پوري خاص دي چه هغه د صفا او مروه څخه دويم طواف دي تر څو حج مکمل شي، او دا ښه څرګنده ده، او دليل په دي باندي د ابن عباس رضي الله عنهما حديث

دي چه بخاري را نقل کړي چه له ده څخه د حج تمتع په باب پوښتنه وشوه نو هغه وفرمايل: (په حجة الوداع کي مهاجرينو او انصارو او د رسول الله ﷺ بيبيانو احرام وتاړه او موږ هم احرام وتاړه ځو کله چه مکي ته راغلو نو رسول الله ﷺ وفرمايل: «تاسو د حج احرام د عمري لپاره وګرځوي مګر که چا خپله هديه نښانه داره کړي وي».

نو له بيت الله او صفا او مروه څخه مو طوافونه وکړل نو بيا له خپلو ښځو سره يو ځای شو او جامي مو واغوښتلي او ځانونه مو حلال کړل، او ابن عباس رضي الله عنه وفرمايل:

که چا هديه نښانه داره کړي وي نو هغه دي ځان نه حلالوي تر څو چه هديه خپل ځاى ته ورسيږي، بيا د يوم الترويي په بيګا کي موږ ته امر وشو چه د حج لپاره احرام وتړو، نو کله چه د مناسکو څخه فارغه شو، نو بيت الله ته راغلو او طواف مو وکړ بيا مو سعي وکړه).

هغه چه مسلم شریف د جابر رضي الله عنه روایت کړي چه رسول الله ﷺ او د هغه ملګرو د صفا او مروه څخه صرف یو لومړني طواف کړي، نو مجهول دي په هغو صحابه ؤ چه هدیي یي لیږلي وي، ځکه هغوي له رسول الله ﷺ سره یو ځاي په احرام باندي پاتي شول تردي د حج او عمري دواړو څخه فارغ شول، او رسول الله ﷺ خو د حج او عمري دواړو څخه فارغ شول، او رسول الله ﷺ خو د حج او عمري دواړو لپاره احرام تړلي ؤ، او امر یي وکړ چه که چا هدیه لیږلي وي نو د حج او عمري دواړو لپاره دي احرام وتړي، او ځان دي تر هغي پوري نه حلالوي تر څو چه د دواړو څخه وزګار شوي نه وي. او په حاجي قارن باندي صرف یوه سعي ده لکه د جابر رضي الله عنه په حدیث کي چه څرګنده شوه.

دغه راز په حاجي مفرد باندي هم یوه سعي ده او دي به د اختر تر ورځي پوري په احرام کي پاتي کیږي، نو کله

چه حاجي قارن او مفرد د طواف قدوم نه وروسته کومه سعي کوي نو دا د ده لپاره د هغي سعي په ځاي چه د طواف افاضه نه يي وروسته کوي کفايت کوي، نو په دي ترتيب سره د احاديثو خپل منځني تعارض دفعه شو او په ټولو عمل وشو.

او د دغي جمعي د تأييد په برخه کي موږ دا ويلاي شو چه د بي بي عائشي او ابن عباس رضي الله عنهما حديثونه دواړه صحيح دي، او موږ دويمه سعي د حاجي متمتع لپاره ثابته کړي، او په ظاهره کي يي د جابر رضي الله عنه حديث نفي کوي، خو مثبت په نفي کونکي مقدم وي او دا د اصول فقه او اصول حديث کلي قاعده هم ده والله اعلم.

## هغــه چه یو حــاجي يي بـايد د اخـتــر په ورځ وکړي:

د حاجي لپاره غوره داده چه بايد دغه څلور کارونه په ترتيب سره پاي ته ورسوي:

١ – جمرة العقبة به ولي.

٢ – بيا به قرباني کوي.

٣ – بيا به سر خريوي او يا به ويښته لنډوي.

٤ – بيـا له بيت الله څخه طواف او د صفـا او مروه څخه سعي کوي.

خو دا د حاجي متمتع لپاره، د حاجي مفرد او قارن لپـاره هم همـدغـه ترتيب دي کـه د طواف قـدوم سـره يي سـعي نه وي کـړي، کـه له دغـو کـارونو څـخـه يو پر بل وړاندي کړ، نو پروا نلري لکه رسول الله ﷺ په دغه ورځ د دغه ډول کړونو په باب رخصت ورکړي، نو په دي کي دا هم داخليږي چه که په دغه ورځ يو حاجي سعي په طواف

مقدم کړي نو هم پروا نلري، او د صحابي دا وينا ديته شامله ده چه فرمايي: په دغه ورځ د هيڅ شي د تقديم او تاخير په باب پوښتنه نه ده شوي مګر دا چه رسول الله ﷺ به ورته همدا ويل: «وکړه او پروا نلري» او دغه ډول کارونه زياتره د ناپوهي او نسيان له کبله واقع کيږي، نو دغه ټول په دغه عموم کي داخل دي، ځکه په دي کي آسانتيا او سهولت دي، او د رسول الله ﷺ نه د هغه چا په باب چه مخکي د طواف څخه يي سعي کړي وه، پوښتنه وشوه نو هغوي وفرمايل چه: «پروا نلري» نو د دي په وضاحت کي خو بيخي شك نشته.

## هغه کارونه چه د هغي په ترسره کولو يو حاجي په بشپړه توګه حلاليږي دري دي:

١ – د جمرة العقبة ويشتل.

٢ – د سر ويښتان خريول.

٣ – او طواف افاضه سره له سعي

د حاجي لپاره مستحب دي تر څو د زمزم اوبه وڅکي او ځان موړ کړي، او ګڼوره دعا وکړي، په صحيح مسلم کي د ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دي فرمايي چه رسول الله ﷺ د زمزم د اوبو په باب وفرمايل چه: د زمزم اوبه د وږي ډودي او د ناروغ دواء ده».

د طواف افاضي او سعي نه وروسته به حاجيان بيرته منى ته ورځي، او هلته به دري شپي او دري ورځي پاتي کيږي تر څو پاتي دري جمري وولي، هره ورځ به د زوال نه وروسته دري واړه جمري ولي، البته په ويشتلو کي يي ترتيب واجب دي.

نو لومړي به هغه جمره ولي چه مسجد خيف ته نيږدي ده او هغي ته جمرة الأولى ويل کيږي، نور به پرلپسي تو ګه به يي په اوو ګيټکيو سره وولي، او د هري ګيټکي د ويشتلو سره به لاس پورته کوي، سنت طريقه داده چه جمره په چپ طرف ته کړي او مخ به قبلي ته کړي

لاسونه به پورته کړي او دعا او زاري به کوي، بیا به دویمه جمـره وولي، او سنت طریقـه داده چه لږ به وړاندي شي جمره به ښي طرف او مخ به قبلي ته کړي، لاسونه به پورته کړي او ښه ډیره دعا به وکړي، بیا به دریمه جمره وولي او د هغي سره به نه ودریږي.

بیا د ایام تشریق په دریمه ورځ وروسته د غرمي نه پاتي جمـرات وولي، د لومـړني او دویمي جمـري د ویشـتلو په صـورت کي به همـاغـه څه کوي چه په جمـره العـقبـة په لومړني ورځ کي کړي وي تر څو د رسول الله ﷺ په سنتو عمل وشي د جمراتو ویشتل په لومړنیو دوو ورځو د ایام تشـریق کسـي د حج د واجبـاتو نه دي ،دغـه راز په منی کښي لومړني شپه او دویمه شپه پاتي کیدل دا هم واجب دي په دریمه ورځ که څوك تعجیل کوي نو پروا نه لري.. د لږ پریوتو نه به مخکي د منی څخه ووځي، او که چا تاخیر وکړ او دریمه شپه یي په منی وکړه، او په دریمه ورځ یي هم

جمرات وویشته دا هم غوره خبره ده، او اجر یي زیات دي لکه الله تعالی فرمایي:

ژباړه: «او یادوئ! الله (د تکبیراتو په ویلو سره) په څو ورځو شمیرلیو شویو (د تشریق کښي) نو هر چا چه بیړه (تلوار) وکړه (په تلو کښي له منی مکي ته) په دوو ورځو کښي (چه (۱۱–۱۲) د ذي الحجي دي) نو نشته هیڅ گناه پر دغه تلوار کوونکي، او هر چا چه تأخیر وکړ (او دري ورځي په منی کي پاتي شو) نو نشته هیڅ گناه په ده باندي دا بیگناهي هغه چا لره ده چه پرهیز یي کړي وي (له مناهیو څخه)».

[البقره : آیت ۲۳]

بله دا چه خلکو ته د تعجیل په باب رخصت ورکړي ؤ، خو بخپله یي تعجیل نه ؤ کړي، بلکه په منی کي پاتي شو تر څو یي چه د دریمي ورځي د غرمي نه وروسته وویشتلي، بیا یي د ماسپښین د لمانځه څخه وروسته له منی څخه حرکت وکړي.

د ماشوم د ولي لپاره جواز لري چه که ماشوم د ويشتلو توان ونلري نو ټول جمرات د خپلو جمراتو د ويشتلو څخه وروسته د هغه لپاره هم وولي، همدغه راز حکم د ماشومي جنيو او د هغي د ولي په باب هم دي، لکه د جابر رضي الله عنه په حديث کي چه فرمايي:

«موږ د رسول الله ﷺ سره حج کاوه، او له موږ سره ښځي او ماشومان هم ؤ، نو موږ د ماشومانو لپاره تلبيه او د جمراتو ويشتل هم وکړه». رواه ابن ماجه.

دغه راز که يو څوك ناتوان يا مريض وي يا حامله ښځه وي کولاي شي د جمرو ويشتلو لپاره وکيل ونيسي چه د هغه لپاره جمري وولي، ځکه الله تعالى فرمايي:

ژباړه: «وويرېږئ تاسي له الله څومره چه توانيږي».

[التغابن: آيت ١٦]

نو د دوي خو توان نه رسيږي ځکه مزاحمت نشي کولاي، له بلي خوا د جمراتو وخت تري فوتيږي او د هغي

قضا هم نشته نو مجبور دي تر څو وکيلان ونيسي، خو په نورو مناسکو د حج کي بيا دا حکم نه دي، نو محرم نشي کولاي چه نائب ونيسي، که څه هم د هغه حج نفلي وي، ځکه چه که د حج او عمري نيت وکړي که څه هم نفلي وي نو پوره کول يي لازمي دي، ځکه الله تعالی فرمايي: «او پوره ادا کړي حج! او عمره خاص الله لره».

[البقرة: آيت ١٩٦]

او د سعي او طواف وخت خو نه فوتيږي.

او هر چه په عرفات ودريدل، په مزدلفه او منی کي شپي تيرول دي، نو په دي کي خو شك نشته چه د هغي وخت فوتيږي، (د ناتوان او ضعيف سړي) رسيدل ممکن ده که څه هم په تکليف سره وي، او نشي کولاي نائب ونيسي، په خلاف د جمراتو د ويشتلو نه، ځکه په هغي کي نيابت د معذور سړي له سلفو صالحينو څخه نقل ثابت دي. او عبادت توقيفي دي، څوك نشي کولاي بي وکيله

کوم شي پکښې را پیدا کړي.

د نائب لپاره روا ده چه لومړي د خپل ځان او بیا د خپل مستنیب (نیابت غوښتونکي) لپاره ټول جمرات په یو ځاي ولاړ وولي، په ده باندې لازمه نه ده چه لومړي د خپل ځان لپاره وولي، بیا راشي او بیا بیرته ولاړ شي او د خپل مستنیب لپاره یي وولي، ځکه کوم موجب دلیل په دې برخه کې نشته، سربیره په دیکې مشقت او حرج هم دی.

او الله تعالی فرمایي: «او نه یي دي ګرځولي (ته یي دي ایښې) په تاسي په دین هیڅ حـــرج (مـــشـــقت او اشکال)».

[الحج: آیت ۷۸]

له بلي خوا رسـول الله ﷺ فرمایي: «آسانتیا وي برابروي او سختي مه کوي»

او په دې برخه کې له اصحابو (رضوان الله علیهم) څخه هم څه نقل نشته.

# د قِران او تمتع قرباني

په حاجي متمتع او قارن باندي د دم (پسه) د وجوب صورتونه:

په حاجي متمتع او قارن باندي - د مسجد الحرام له حاضرينو څخه نه وي - دم واجب دي - هو! دم پسه، او يا د اوښ او غويي اوه مي برخي ته وايي، دغه راز لازمه ده چه دا د حلال مال څخه ورکوي ځکه الله جل جلاله پاك دي او ناپاکه نه قبلوي».

او په مسلمان باندي لازمه ده چه د سؤال کولو څخه به د ډه کوي، که د هديي په رابطه وي او که د بل څه په رابطه، له پاچايانو څخه وي او که د بل چا نه، کله چه الله پاك د ده په واك دومره مال ورکړي وي چه دي يي د خپل ځان څخه هديه کړي، او د نورو څخه يي پروا شي، له دي کبله چه يو زيات شمير احاديثو د سوال بدي او عيب بيان کړي، او د دده کونکي صفت يي کړي دي.

که حاجي متمتع او قارن له هديي څخه عاجز شول، نو پر دوي لازمه ده چه لس روژي به نیسي دري په حج کي او وه کله چه کورته راشي، د حج په دري روژو کي اختیار لري که د اختر د ورځي څخه يي مخکي نیسي او که د تشريق په ورځو کي يي نیسي.

الله پاك فرمايي: «پس هر چا چه نفع واخیسته په عمري سره (چه یو ځاي يي کړ) له حج سره نو (واجب) دي پر ده باندي هغه چه آسان وي له، هديي څخه (چه مذبوحه ده) هر چا چه و نه مونده هدیه (چه مذبوحه ده) نو (واجب) دي په دي باندي روژي د دري ورځو په (ورځو د حج کښني) او اوه ورځي (نوري) کله چه وګرځي (تاسي) دا لس ورځي پوره، دا (حکم د تمتع) هغه چا لره دي چه نه وي عیال د ده اوسیدونکي په (حوالي د احاطه) مسجد حرام کي».

[البقرة: آیت ۱۹۶]

په صحيح البخاري کې له بي بي عائشې او ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چه د تشريق په ورځو کې د روژې نيولو اجازه نشته، مګر هغه څوك چه هدېي ترلاسه نکړې، او دا په حکم د حديث مرفوع کې دی رسول الله ﷺ خو غوره دا ده چه دغه درې روژې د عرفې په ورځ مقدم کړې، د دې لپاره چه د عرفې په ورځې روژه و نه اوسېږې، ځکه رسول الله ﷺ په دغه ورځ روژه نه ؤ، او په عرفات کې يې د عرفې د ورځې د روژې څخه منع فرمايلې، له بلې خوا بوزه کيدل دته په دغه ورځ ګټه ور دې تر څو د ذکر او دعا لپاره تکړه ووسېږې.

د حج درې روژې، او په کور کې نورې اوه روژې په پرلپسې توګه هم نيولې شې او متفرقه يې هم نيولې شې، البته په پرلپسې توګه نيول يې لازمي نه دې، ځکه الله پاك په دې برخه کې تتابع نه ده شرط کړې، دغه راز رسول الله ﷺ هم په دې برخه کې کوم ارشاد نه دی فرمايلې، او

غوره داده چه په هغو وو ورځو کي تاخير وکړي تر دي چه کله کورته راشي، ځکه الله پاك فرمايلي :﴿ **وسبعة إذا رجعتم** ﴾.

دا چه د هديي ښخه عاجز وي د هغه لپاره غوره داده چه روژي ونيسي نه دا چه پاچايانو او نورو ته د سوال لاسونه ور اوږده کړي.

که چا ته پرته له سوال کولو ښځه هديه يا بل څه ورکړشو نو په هغي څه باك نشته، که څه هم د بل چا لپاره حج کونکي ووسي، معنی دا چه کله اهل د نيابت په ده باندي د هغه مال ښخه چه دته يي ورکړي وي د هديي اخيستل شرط کړي نه وي، او دا چه ښيني خلك د حکومت ښخه د اشخاصو به نوم هديي اخلي او دي په هغي کي ريښتوني نه وي، نو د هغي په حرام والي کي څه شك نشته، ځکه چه دا د درواغو خوراك کول، يا خورول دي، الله دي موږ ور ښخه وساتي.

# نیکي ته بلنه او په دي هکله د حجاجو مسؤلیت:

په حاجیانو او نورو باندي د امر بالمعروف او نهي عن المنکر وجوب تر ټولو غټ کار چه په حاجیانو او نور وګړو لازم دي هغه امر بالمعروف او نهي عن المنکر دي، او په جماعت سره د پنځه وخته لمونځونو ساتنه ده؛ لکه څنګه چه الله پاك په خپل کتاب کي او د خپل پیغمبر علیه الصلاة والسلام په ژبه په دي سره امر کړي.

دا چه ځیني وګړي د اهل مکه ؤ او نورو څخه د جوماتونو پر ځاي په خپلو کورونو کي لمونځونه کوي، هغوي له شرعي څخه مخالفت کوي، نو له دي کار څخه د وګړو ژغورل لازمي دي، او خلکو ته باید په مسجدونو کي په لمونځونو کولو امر وکړ شي، ځکه دا د رسول الله ﷺ څخه ثابته ده چه کله ابن ام مکتوم له رسول الله ﷺ څخه په کور کي د لمانځه اجازه وغوښتله سره له دي چه

ړوند ؤ مګر بیــا هم رســول الله ﷺ ورته وویل: «آیا د لمانځه آذان آوري؟» هغه وویل هو! نو رسول الله ﷺ ورته وویل: «تا ته د اجازي څه صورت نه وینم»

دغه راز رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه «قصد لرم چه د لمانځه په درولو امر وکرم، بیا یوه سړي ته د امامتي امر وکړم ،او هغه خلکو ته امامتي وکړي، بیا زه د هغو خلکو کورته ولاړ شم، چه لمانځه ته نه حاضریږي او کورونه یي ورباندي وسوزوم».

په ابن ماجه کي په صحیح سند سره د ابن عباس رضي الله عنهمـا روایت نقل دي چه رسول الله ﷺ فرمایلي: «څوك آذان واوري او لمانځه ته حاضر نشي نو د هغه لمونځ نه صحیح کیږي، مګر دا که عذر ولري نو بیا، پروا نلري».

په صحیح مسلم کي له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت نقل دي چه فرمایي: «که څوك غواړي په دي خوښ اووسیږي چه سبا ورځ له الله سره مسلمان مخامخ

شي، نو هغه دي د دغو لمونځونو ساتنه وکړي، چېرته د هغي لپاره أذان کيږي» ځکه الله خپل نبي ته د هدايت لاري چاري ښودلي، او دغه لمونځونه د هدايت لاري چاري دي، او که تاسو په کورونو کي د بيرته پاتي کسانو په څير لمونځونه وکړي، نو د خپل پيغمبر سنت به پريږدي، او که د خپل پيغمبر سنت مو پريخودل، نو خامخا به بي لاري شي، او هيڅ کوم داسي سړي به نه وي چه په ښه توگه اودس وکري او بيا له دغو جماتونو څخه کوم يوه ته د تلو قصد وکړي مگر دا چه د ده لپاره د هر پل (قدم) په بدل چه پورته کوي يي يوه نيکي ليکل کيږي او يوه درجه يي لوړيږي، او گناه يي له مينځه وړي، او زه پوهيږم چه د لمانځه څخه څوك تخلف نکوي، مگر دا چه منافق به وي او منافقت به يي هر چاته معلوم وي، او يو سړي به داسي هم ؤ چه هغه به د دوو سړيو تر مينځ په دير زحمت راښکودل کيده تر دي چه په صف کي ودرول شو».

په حاجیانو او نورو باندې لازمه ده چه باید حرامو له ارتکاب څخه په کلکه ډډه وکړي، د مثال په ډول له زنا، لواطت، غلا، سود خوړل، د یتیم مال خوړل، په معاملاتو کې ټګي کول، په امانت کې خیانت کول، شراب څښل، چرس، سګرټ څکول، له ښځو څخه په ښکته د جامو ځوړوندول، کبر، حسد، ریا، غیبت، چوغلګري، مسلمانانو پورې مسخرې کول، د لهو او لعب آلات استعمالول، د سندرو او موسقي آوریدل، شطرنج او قمار، او دساکښانو تصویرونه ویستل، دا ټول هغه منکرات دي چه الله جل جلاله په هر وخت او زمان او په هر ځای کې په خپلو بندګانو حرام کړي، نو حاجیان او د بیت الله اوسیدونکي خو باید تر ټولو د مخه ور څخه ځان وساتي، ځکه ګناه کول د امن په دغه ښار کې ډیره سخته وي، او عذاب یې غټ او دروند وي.

لکه څنګه چه الله جل جلاله فرمایي: «او چا چه

اراده وکړ په دغه ( مسجد الحرام ) کښني د بي لاري ( د حق نه په مخ گرځولو سره ) په ظلم سره نو وبه څکوو مونږ په هغه ( د کړيدونکي ) له عذاب دردناك څخه ».

[ الحج: آيت ٢٥ ]

دا چه په حرم دي په ظلم سره د الحاد د کولو په اراده باندي الله پاك دومره وعيد او زورنه ورکوي، نو د هغه به څه حال وي چه د دغه جرائمو مرتکب شي، نو په دي اساس دغلته له گناه کولو څخه په کلکه ډډه کول پکار دي.

حاجي د حج ثواب او د گناهونو مغفرت يواځي په همدي توگه ترلاسه کولاي شي چه د گناهونو څخه ځان وساتي، لکه په حديث کي د رسول الله ﷺ څخه نقل دي چه فرمايي: « څوك چه له بدعمليو رفث فسق او فجور څخه پاك حج وکړي نو له گناهونو څخه به داسي سپيځلي شي لکه د مور نه چه پاك پيدا شوي وي.

په دغو ګناهونو کي تر ټولو غټ ګناهونه دادي چه يو ځوك د مړو څخه د څه غوښتنه وکړي، هغوي ته نذرونه او حلالي وکړي، تر څو د هغوي ستونزي حل شي، دا په حقيقت کي د جاهليت دور ته ورته لوي شرك دي، او الله جل جلاله د دغه شرك د له مينځه وړلو لپاره أنبياء عليهم الصلاة والسلام راوليږل او هغوي ته يي کتابونه ورکړه.

نو په حاجيانو او نورو باندي لازمه ده چه له شرکياتو څخه ځانونه وژغوري، او په تيرو ګناهونو توبه وباسي، او له توبي څخه خپل حج له سره وکړي، ځکه لوي شرك په کلي توګه تول ښه اعمال له مينځه وړي، لکه څنګه چه الله جل جلاله فرمايي:

ژباړه: «او که (فرضاً) شريك کړي وي دوي له (الله سره نور) نو خامخا به ضائع شوي وي له دوي نه هغه عمل چه وو دوي چه کاوه به يي».

[الأنعام: آيت ٨٨]

او د شرك اصغر (وړوکي شرك) يو هم د الله څخه

پرته به بل څه قسم خوړل دي لکه يو څوك ووايي: قسم په پيغمبر، په کعبه، په امانتونو او داسي نور.

او بل له شرك څخه ريا او سمعت دي، او داسي وينا (ما شاء الله وشئت، (څه چه د خداي خوښه او ستا خوښه وي) ولولا الله وأنت (كه الله پاك او ته نه واي نو...) وهذا من الله ومنك او دا د الله جل جلاله او ستا د لوري نه ؤ او داسي نور، نو د دغو شركي منكراتو څخه ځان ژغورنه لازمي ده، دغه راز نورو ته د دي په ښودلو وصيت كول واجب دي، له دي كبله چه د رسول الله ﷺ څخه ثابته ده چه هغه فرمايلي دي: «چا چه په غير الله قسم وخوړ نو هغه كفر يا شرك وكړ». رواه ابو داود والترمذي باسناد صحيح.

دغه راز په صحيح البخاري كي د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «كه څوك قسم خوړل غواړي نو بايد په الله دي قسم وخوري او

يا چپ پاتي شي ».

دغـه راز رسـول الله ﷺ فـرمـايلي دي: « چا چه په امانت قسم وخوړ، نو هغه له موږ څخه نه دي ».

دغه راز فرمايي: « تر ټولو زيات هغه څه چه زه پري په تاسو ويريږم هغه وړوكي شرك دي ».

نو بيا له هغـه څـخـه د وړوكي شـرك په باب پوښـتنه وشوه، نو ويي فرمايل: « چه شرك اصغر عبارت له ريا څخه دي » .. دغـه راز رسـول الله ﷺ وفـرمـايل چه داسي مـه واياسـت چه ( مـا شـاء الله وشـاء فـلان، ) بـلكه وواياست: ( ما شاء الله ثم شاء فلان ).

نسايي د ابن عباس ( رضي الله عنهما ) څخه روايت نقل كړي فرمايي چه يو سړي رسول الله ﷺ ته وويل: ( يا رسـول الله مـا شـاء الله وشـئـت )، نو رسـول الله ﷺ ورته وفرمايل: «آيا زه دي د الله جل جلاله سره شرك كړم؟ ( بل ما شاء الله وحده ). دغه ټول احاديث په دي خبره دلالت

کوي چه ده د توحید څخه څومره پاسداري کوله، او څومره به یي خپل امت له غټ او وړوکي شرك څخه منع کاوه، او د هغوي د ایمان په ساتنه څومره حریص ؤ، او څومره به یي زیار ویسته چه امت یي د الله د عذاب او د هغه د قهر د عواملو څخه وژغورل شي، الله دي هغه ته تر ټولو بدله ورکړي، بي له شکه هغه تبلیغ او انذار ویرول او د الله لپاره یي د هغه بندگانو ته نصیحت کړي، صلاةً وسلاماً علیه دائمین إلی یوم الدین.

خو اهل علمو حجاجو او د مکي او مدیني، پر پوهانو لازمه ده چه خلکو ته ښودنه وکړي، او د محرماتو او شرك له انواعو څخه یي وویروي، او د دلائلو په رڼا کي ورته پوره وضاحت وکړي، تر څو خلك له تیارو څخه رڼا ته راوباسي، او له بلي خوا دوي خپل واجبات او مسئولیتونه سرته ورسوي لکه څنگه چه الله جل جلاله فرمایي:

ژباړه: «یاد کړه هغه وخت چه کله الله جل جلاله د

اهل کتابو ځخه ژمنه واخیستله تر څو هرومرو به هغه خلکو ته بیان کړي، او له ځانه سره یي پټ و نه ساتي».

[آل عمران: آیت ۱۸۷]

له دي ځخه هدف دادي چه علماء باید د حق د پټولو په لړ کي د ظالمو اهل کتابو له ناوړه سلوك نه ځانونه وژغوري، الله پاك جل جلاله فرمایي:

ژباړه: «بیشکه هغه کسان چه پټوي (دوي له خلقو ځخه) هغه شي چه نازل کړي دي مونږ له ښکاره ؤ (أحکامو او واضحو دلائلو) او د هدایت (خبري) پس له هغه چه بیان کړي دي مونږ هغه لپاره د خلقو (یعني بني اسرائیلو) په کتاب (تورات) کښي دغه کسان چه دي لري کوي دوي الله له رحمت خپل، او لعنت وایيَ پر دوي لعنت ویونکي (له پرښتو، انسانانو، پیریانو او نورو مخلوقاتو) مگر هغه کسان چه بیرته وگرځیدل (له شرکه او پټولو د نعمت) او نیك یي کړ عمل خپل او بیان یي کړه

( حقه خبره ) نو دغه کسان ( چه دي ) رجوع به وکړم زه په رحمت سره په دوي باندي او هم دا زه ښه توبه قبلوونکي پوره رحم لرونکي یم ( د توبي په منلو او د رحـــمت په نزول ) ».

[ البقرة: ۱۵۹ – ۱٦۰ آیتونو ژباړه ]

قرآني آیتونه او نبوي احادیث په دي دلالت کوي چه دعوت الی الله او د الله جل جلاله بندگان د هغه څه په لور رهبري کول چه د هغي لپاره پیدا شوي دي، د مهمو واجباتو او ثوابونو څخه گڼل کیږي، او همدغه تر قیامته پوري د رسولانو او د هغوي د لارویانو لاره ده.

لکه الله جل جلاله فرمایي: « او څوك دي ډیر ښائسته ( بلکه نشته ) له جهته د وینا له هغه چا چه بولي ( خلق ) طرف د الله ته، او عمل کوي نیك او وایي بیشکه زه له مسلمانانو غاړه ایښوونکیو یم ( احکام الله ته ) ».

[ فصلت: ۳۳ آیت ژباړه ]

دغه راز الله جل جلاله فرمایي: « ووایه ( اي محمده!

دوي ته ( چه دغه ایمان او توحید ) لاره زما ده چه ( ټینګ پرې ولاړ یم او ) بولم زه ټول خلق طرف د ( توحید ) د الله ته په بیان ( او ښکاره دلیل ) سره د هم زه او ( هم هر ) هغه څوك چه متابعت پیروي کوي زما او پاك دي الله ( له شریك او ولده او نورو عیبونه ) او نه یم زه له شریك نیوونکیو ( په الله پورې ) ».

[ یوسف : ۱۰۸ آیت ژباړه ]

او رسول الله ﷺ فرمایلي دي :

« څوك چه چا ته د نیکویو په لور لارښوونه کوي لکه دغه نیکي چه هغه په خپله کړې وي » رواه مسلم .

رسول الله ﷺ علي رضي الله عنه ته وفرمایل : « دا چه الله ستا په واسطه یو سړي ته لارښوونه وکړي ستا لپاره د سرو اوښانو څخه غوره ده » متفق علیه .

په دې برخه کې زیات شمیر آیاتونه او احادیث راغلي دي اهل علمو او مؤمنانو ته په کار دي چه الله ( جل جلاله )

ته د دعوت په لیاره کي خپل کوښښونه په کار واچوي، او د هلاکت څخه د نجات وسائل برابر کړي په ځانګري توګه په دي د فساد او فتني په عصر او زمان کي چه د اسلام د ښمنو لپاره کفارو سره لاسونه سره یو کړي.

(ولا حول ولا قوة إلا بالله العلي العظيم).

## له طاعاتو څخه د توبني برابرول:

د حاجي لپاره مستحب ده تر څو چه په مکه کي اوسیږي، نو ذکر طاعت او عبادت به زیات کوي او طوافونه به ډیر کوي، ځکه نیکي په حرم کي په څو چنده زیاتي ترلاسه کیداي شي، د دي متقابل په حرم کي بدي کول همدغه شان غټه ګناه ده، دغه راز حاجي ته پکار دي چه په رسول الله ﷺ درود او سلام زیات وایي.

کله چه حاجیان د مکي څخه د وتلو اراده وکړي، نو پردوي واجب ده تر څو د وداع طواف وکړي، تر څو د دوي

وروستي عهد او پيوستون د بيت الله په نسبت تينګ او ثابت پاتي شي، مګر په حائضه او نفاسه ښځه د دوداع طواف نشته. لکه څنګه چه د ابن عباس رضي الله عنهما په حديث کي راغلي دي چه: رسول الله ﷺ خلکو ته امر وکړ تر څو د وداع طواف وکړي هو! هغه د حائضي ښځي په نسبت تخفيف وکړ» متفق عليه.

کله چه طواف وکړي او له مسجد څخه د وتلو اراده وکړي، نو په مخه به ځي او پسي شا تلل - چه مخ بيت الله ته کړي او پر شا حرکت وکړي - نه دي پکار، ځکه دغه ډول عمل د رسول الله ﷺ او صحابه ؤ څخه نه دي نقل شوي، بلکه دا يو بدعت محدثه دي. او رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «که چا يو داسي کار وکړ چه زموږ د طريقي خلاف وو هغه رد او د منلو وړ نه دي».

دغه راز رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

«په دي کي له محدثاتو څخه ځان وساتي ځکه هر

محدث په دي کي کوم نوي کار له ځانه پيدا کړل ـ بدعت وي او هر بدعت گمراهي او بي لاري توب دي».

د الله جل جلاله نه غواړو چه پر دين مو ثابت او محکم کړي، او له بدعاتو څخه مو وژغوري، الله تعالی جواد او کريم دي.

## د زيارت احکام او آداب

د رسول الله ﷺ د مسجد څخه ليدنه او کتنه سنت ده که څه هم د حج څخه تر مخه وي، او که وروسته وي ځکه چه په بخاري او مسلم کي له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «ځما په دغه مسجد کي يو لمونځ کول د نورو مسجدونو د زرو لمونځونو څخه غوره دي، هو! مگر د مسجد حرام څخه نه دي غوره همدغه راز حديث په مسلم شريف کي د ابن عمر رضي الله عنه څخه هم نقل شوي دي چه همدغه مفهوم په گوته کوي.

دغـه راز د عـبـد الله بن الزبيـر رضي الله عنه څـخـه روايت دي چه فرمايي رسول الله ﷺ وفرمايل: «ځـما په دي مسجد كي يو لمونځ كول د نورو مسجدونو په نسبت زر درجي افضليت - غوره والي - لري مگر د مسجد حرام په نسبت نه، هو! په مسجد الحرام كي يو لمونځ كول زما د مسجد په نسبت د سلو لمونځونو څخه زيات افضليت لري» ( رواه احمد وابن خزيمه وابن حبان ) .

دغـه راز د جـابر رضي الله عنه څـخـه روايت دي فرمايي : رسول الله ﷺ وفرمايل: «ځـما په مسجد كي يو لمونځ كول د نورو مساجدو په نسبت زر درجي غوره دي، مگر د مسجد حرام په نسبت نه، هو! په مسجد الحرام كي يو لمونځ كول د نورو مساجدو په پرتله د يو لك لمونځونو څخه غوره دي» رواه احمد وابن ماجه .

احاديث په دي برخه كي بيخي زيات دي، نو كله چه زيارت كوونكي مسجد ته ورسيږي نو مستحب ده تر څو

ښي پښه مسجد ته د ننوتلو په وخت وړاندې کړي او داسې ووايي «بسم الله والصلاة والسلام على رسول الله أعوذ بالله العظيم وبوجهه الكريم وسلطانه القديم من الشيطان الرجيم، اللهم افتح لي أبواب رحمتك».

هو! دغه دعا تر مسجد نبوي پورې خاص نه ده بلکه هر مسجد ته د ننوتلو په صورت کې به يې وايي او د مسجد نبوي د داخليدو لپاره کوم خاص ذکر نشته، بيا به دوه رکعته لمونځ وکړي او د الله جل جلاله نه به د دنيا او آخرت ښيګنې وغواړي، او که لمونځ په روضه شريف کې وکړي نو ډير غوره دي، ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: «زما د کور او منبر تر مينځ د جنت د باغچو څخه يوه باغچه ده».

بيا د لمانځه څخه وروسته به د رسول الله ﷺ د قبر زيارت وکړي، او ورسره به د هغه د وو ملګرو ابوبکر صديق او عمر فاروق رضي الله عنهما زيارت هم وکړي.

باید په دیر ادب سره د رسول الله ﷺ د قبر په وړاندي ودریږي او سلام به پري واچوي او داسي به وايي:

«السلام عليك يا رسول الله ورحمة الله وبركاته»

ځکه چه په ابو داود کي له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت نقل دي فرمايي چه: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «هيڅوك به داسي نه وي چه پر ما سلام واچوي مگر دا چه الله پاك ماته زما روح را واپس کوي تر څو د هغه د سلام ځواب ورکړم».

او كه زيارت كوونكي په خپل سلام كي داسي ووايي چه: «سلام پر تا أي د الله نبي، سلام پر تا أي د الله په مخلوقاتو كي د هغه غوره بنده، سلام پر تا اي د رسولانو سرداره، أي د متقيانو پيشوا، گواهي وركوم چه بي له شكه تا خپل د رسالت دنده او مسؤليت سرته رسولي، تا دغه امانت ادا كړي، او امت ته دي نصيحت كړي، او د الله (جل جلاله) په لاره كي دي حق جهاد كړي».

نو پروا نلري ځکه دا ټول د هغه اوصاف دي، بيا به ورباندي درود ووايي او دعا به ورته وکړي، په شريعت کي په رسول الله ﷺ د صلاة او سلام يو ځاي جواز لري او کټ مټ په دي آيت عمل کول دي چه فرمايي:

«اي هغو کسانو چه ايمان يي راوړي دي (يعني اي مؤمنانو) درود ووايي پر هغه (نبي) باندي او سلام (پري) ووايي په سلام ويلو سره».

[د احزاب سوره د ٥٦ آيت ژباړه]

بيا به په ابوبکر او عمر رضي الله عنهما سلام واچوي، او ابن عمر رضي الله عنهما به چه کله په رسول الله ﷺ او د هغه پر دوو ملګرو سلام اچوو، نو ګالبا په دي الفاظو به يي اکتفا کوله: «سلام پر تا أي د الله رسوله، سلام پر تا أي ابوبکر، سلام پر تا اي پلاره» بيا به راستون شو.

البته دغه زيارت يواځي دنارينه وو لپاره دي، او د ښځو لپاره د قبرونو زيارت نشته، لکه څنګه چه رسول الله

ﷺ فرمايي: «د قبرونو څخه زيارت كوونكي ښځي لعنتي كړي شوي دي، دغه راز هغه څوك چه په قبرونو مساجد جوړوي او چراغونه بله وي».

اما مسجد نبوي ته د لمانځه په نيت تلل او هلته دعا غوښتل د ټولو لپاره ثابته ده، ځكه په دي برخه كي زيات احاديث راغلي دي.

٢ - زيارت كونكي ته په كار دي چه پنځه وخته لمونځونه په مسجد نبوي كي په جماعت سره ادا كړي او دا سنت دي، ذكر او دعا او نفلي لمونځونه وكړي تر څو اجر تر لاسه كړي.

٣ - دغه راز مستحب ده تر څو په روضه كي نفلي لمونځونه وكړي ځكه د دي په غوره والي كي حديث راغلي دي كوم چه مخكي تير شو.

اما د فرضي لمونځونو په باب زيارت كوونكو او نورو ته

په كار دي تر څو په بشپړ اهتمام سره د هغي ساتنه وكړي

او حتى الوسع به د لومړني صف په لور هڅه كوي، ځكه

چه يو زيات شمير احاديث د لومړني صف په لور ترغيب

وركوي: رسول الله ﷺ فرمايلي: «كه وګړي په دي

وپوهيږي چه په اذان او لومړني صف كي څومره ثواب او

اجر دي، خو نشي كولاي دغه ثواب ترلاسه كړي مګر دا

چه كه د هغي د ترلاسه كولو پخاطر قرعه اندازي

(خسني) وكړي نو خامخا به دوي دا كار وكړي»

(متفق عليه)

دغه راز رسول الله ﷺ خپلو اصحابو رضي الله عنهم

ته وفرمايل: وړاندي شي او په ما پسي اقتداء وكړي، او

وروسته له تاسو څخه چه كوم خلك راځي هغوي به په

تاسو اقتدا كوي، او يو سړي تل د لمانځه څخه بيرته كيږي

تر دي چه الله يي د خپل رحمت نه هم وروسته كړي»

(رواه مسلم).

دغه راز په یو ښه سند سره د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روایت دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: «یو سړي تل د لومړني صف څخه وروسته کیږي تر دي چه الله جل جلاله يي په اور کي هم وروستي کړي»
(رواه ابو داود).

دغه راز رسول الله ﷺ خپلو صحابه وو ته وفرمایل: «ولي د پرښتو په څیر د خپل رب په وړاندي صفونه نه جوړوي؟!

پوښتنه وشوه یا رسول الله د پرښتو صفونه د خپل رب په وړاندي څه ډول وي؟

د الله جل جلاله رسول وفرمایل: لومړني صفوفونه بشپړ کړي او په صفونو کي پیوست والي کوي» رواه مسلم

أحادیث په دي برخه کي ډیر زیات، خو د صفونو د برابرولو حکم ټولو مساجدو ته شامل دي د زیادت څخه تر مخه وي او که وروسته، دغه راز د رسول الله ﷺ څخه په

دي برخه کي هم ترغیب راغلي دي تر څو د صفونو ښي لوریو ته هڅه وشي.

او څرګنده ده چه یمین د صف د رسول الله ﷺ په لومړني مسجد کي د روضي څخه د باندي ؤ، نو څرګنده شوه چه امر په لومړنیو صفونو او ښي لور د صفونو دا مقدم دي په امر کولو په لمانځه سره په روضه شریفه کي، نو د لومړنیو صفونو او ښي لوریو ته پام لرنه کول دا غوره ده له دي چه په روضه کي د لمانځه ادا کولو لپاره هڅه وشي، که څوك په احادیثو کي غور وکړي نو دا خبره بیخي څرګنده ده.

٤ - هیچا ته روا نه ده تر څو د حجري په دیوالونو او د اسپنو پوري ځان وسولوي، او یا یي ښکل کړي او یا طواف ور څخه وکړي، ځکه دغه کار د صالحینو سلفو څخه نه دي نقل شوي، بلکه دغه کار یو منکر بدعت دي.

٥ - دغه راز هیچا ته روا نه ده تر څو د رسول الله ﷺ څخه خپل حاجات وغواړي، ځکه حاجات پوره کول د

الله څخه غوښتل کیږي، او د مړو څخه څه غوښتل شرك دي، او دا د غیر الله د عبادت معنی ورکوي، او د اسلام مقدس دین پر دو بنسټونو ولاړ دي.

١ - یواځې د یو الله جل جلاله عبادت به کولي شي.

٢ - بل دا چه د هغه عبادت به د رسول الله ﷺ په طریقه کولي شي.

او همدغه معنی د دغه شهادت ده چه فرمایي: لا إله إلا الله وأن محمد رسول الله.

٦ - دغه راز هیچا ته روا نه ده چه د رسول الله ﷺ څخه د شفاعت کولو غوښتنه وکړي ځکه شفاعت د الله په ملکیت کي قرار لري نو هغه یواځې د الله څخه غښوتل کیږي لکه الله جل جلاله فرمایي:

﴿قل لله الشفاعة جمیعًا﴾

[د الزمر سورت ٤٤ آیت]

ژباړه: «ووایه (اي محمده! دوي ته) خاص الله ته (اختیار د) شفاعت دي ټول (او بل هیچا لره دخل

نشته».

نو داسي باید ووایي: «اي الله خپل پیغمبر او ملائکي او مؤمن بندګان زما لپاره شافع وګرځوه، او داسي نور..»

هر چه مړي دي نو له هغوي څخه هیڅ شي نشي غوښتل کیداي، نه شفاعت او نه بل څه، که څه هم پیغمبران وي او که نه وي، ځکه چه د مړي څخه عمل قطع کیږي مګر هغه څه چه شارع مستثنی کړي.

په صحیح مسلم کي له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «کله چه انسان ومري نو عمل یي ور څخه قطع شي، مګر دري شیان ور څخه نه قطع کیږي:

١ - صدقه جاریه.

٢ - علم نافع.

٣ - نیك عمله فرزند چه دعا ورته کوي.

او دا چه د رسول الله ﷺ په ژوند کي يا د قيامت په ورځ له هغه څخه د شفاعت غوښتنه ده، نو. دا خو د هغه په واك كي ده، ځکه هغه دغه وخت په دي قدرت لري چه د خپل رب په وړاندي د شفاعت غوښتونكي لپاره شفاعت او سپارښتنه وكړي، هر چه په دنيا كي ده نو دا يواځي تر هغه پوري خاص نه ده بلكه يو مسلمان د بل مسلمان ورور لپاره هم شفاعت كولاي شي، چه داسي ورته ووايي: أي وروره! زما لپاره زما رب ته د داسي داسي موضوع په اړه زما شفاعت وكړه! يعني زما لپاره دعا وغواړه! نو له چا څخه يي چه غوښتنه كړي وي هغه ته روا ده تر څو د الله جل جلاله نه سوال وكړي او خپل وروړته شفاعت وغواړي، كله چه د هغه مطلوب غوښتنه (روا) وي.

او هر چه د قيامت په ورځ د شفاعت مسئله ده، نو هلته د الله جل جلاله د اجازي څخه پرته هيڅوك هم شفاعت نشي كولاي لكه څنگه چه الله.جل جلاله

فرمايي: ﴿من ذا الذي يشفع عنده إلا بإذنه﴾

[د بقري د سورت ۲۵۵ آيت]

ژباړه: «څوك به وي هغه چه سپارښت (سفارش) وکړي په نزد د ده به (هيڅوك يي نشي كولي!) مگر (خو كولي شي) په اذن (حكم) د ده سره».

او د مرگ حالت داسي يو خاص حالت دي چه د انسان ژوند او بيا را ژوندي كيدو څخه توپير لري، څكه چه مړي كوم نوي عمل نشي اجرا كولاي، يوازي هغه څه ورته رسيږي چه د مرگ تر مخ يي اجرا كړي وي.

نو هغه تردي پوري تړل ناروا دي، په دي شك نشته چه د رسول الله ﷺ برزخي ژوند د شهداؤ د ژوند په پرتله بشپړ ژوند دي، لكه هغه ژوند خو يي نشو گنلاي كوم چه مخكي له مرگ يا پس له مرگ په صورت كي وي، بلكه برزخي ژوند يو داسي ژوند دي چه په حقيقت او كيفيت يي يو الله ښه خبر دي.

له دي کبله په حدیث شریف کي تیر شو رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

«هیڅوك به داسي نه وي چه پر ما سلام واچوي مگر دا چه الله زما روح ما ته را واپس کوي، تر څو زه د هغه د سلام ځواب ورکړم»

دا ددې خبري دلیل دي چه هغه وفات دي، او د هغه روح د هغه له بدن څخه بیل شوي، لکن د سلام پر وخت هغه ته د هغه روح را واپس کیږي، د رسول الله ﷺ په مړینه د قرآن او سنتو څخه نصوص بیخي زیات دي او دا یوه متفق علیه خبره ده، لکن دا د هغه د برزخي ژوند په وړاندي مانع نه دي، لکه د شهیدانو مړینه چه د هغوي د برزخي ژوند په وړاندي مانع نه ده، لکه الله تعالی فرمایي:

«او له سره گمان مه کوي (اي محمده اي سامعه!) پر هغو کسانو چه وژل شوي دوي په لاره د الله (جهاد او طاعت) کښني د مړو (مړه نه دي) بلکه ژوندي دي په نزد د رب

خپل رزق ورته در کولي شي».

[ د آل عمران سورت د ١٦٩ آيت ]

دا چه ځيني زيارت کوونکي د رسول الله ﷺ د قبر په وړاندي چهغي وهي، او اوږده اوږده قيامونه کوي دا د شريعت نه خلاف دي، ځکه الله تعالی دغه امت له دي څخه منع کړي چه د رسول الله ﷺ په وړاندي په لوړ غږ سره خبري وکړي لکه ځيني يي چه د ځينو نورو سره کوي، او دي امت ته يي لارښوونه کړي تر څو د رسول الله ﷺ په وړاندي په ټيټ غږ سره وغږيږي لکه الله تعالی فرمايي:

«اي هغو کسانو چه ايمان مو راوړي مه پورته کوي آوازونه خپل برسيره په آواز د پيغمبر او په لوړه ( وچت ) آواز خبري د بعضو د تاسو له بعضو نورو سره له جهته د ويري د دي چه ضائع به شي عملونه د تاسي او تاسي به پري خبر نه وي هغه کسان چه ضائع به شي عملونه د

تاسي او تاسي به پري خبر نه يو هغه کسان چه ټيټوي آوازونه خپل په نزد د رسول الله دا ډله هغه کسان دي چه آزمويلي دي الله (تعالى جل جلاله) زړونه د دوي لپاره د پرهيزگاري او ويري له ده ځيني دوي لره ده ښښنه عوض او ثواب لوي».

[الحجرات: د ۲ – ۳ آيتونو ژباړه]

بل دا چه د رسول الله ﷺ د قبر په وړاندي ډير ودريدل زيات سلامونه اچول د هجوم او ازدحام سبب جوړيري، او د رسول الله ﷺ د قبر په وړاندي غږ پورته کول له شريعت څخه مخالف کار دي، رسول الله ﷺ د ژوند او مړيني په دواړو حالتونو کي محترم دي، نو مؤمن ته پکار ده تر څو د هغه د قبر په وړاندي شرعي ادب مراعت کړي دغه راز ځيني کسان د رسول الله ﷺ قبر ته مخ کړي، لاسونه پورته کړي، بيا دعا کوي، دا ټول د رسول الله د اصحابو او سلفو صالحينو د کړنلاري څخه مخالفت دي، او دغه ډول عمل له بدعاتو څخه گڼلاي

شو، او په دي برخه کي رسول الله ﷺ فرمايي: «له ما نه پس پر ځان باندي زما او د راشده خليفګانو سنت لازم کړي، او په دي منګولي ولګوي، او په هغي محکم اووسيږ، او په امورو کي له محدثاتو څخه ځانونه وژغوري، ځکه هر محدث کار بدعت او نا روا دي او هر بدعت بي لاري توب دي.

(رواه ابو داود)

دغه راز رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «چا چه زموږ په دغه دين کي داسي يو څه را مينځ ته کړله چه هغه له دي څخه نه وي نو هغه رد او د منلو وړ نه دي».

(رواه البخاري ومسلم)

علي بن الحسين زين العابدين رضي الله عنه يو سړي وليد چه د رسول الله ﷺ د قبر په وړاندي مخامخ ولاړ ؤ او دعايي کوله، نو هغه دي له دي څخه منع کړ، او ورته يي وويل: آيا يو حديث چه ما له خپل پلار، نيکه، رسول الله

ﷺ ښځه آوریدلي، درته بیان نکړم هو! رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «زما د قبر څخه عید گاه مه جوړوي او ته د خپلو کورونو څخه قبرونه جوړوي، پر ما درود او سلام وایات ځکه ستاسي سلام په هر ځای کي چه او وسیږي ماته رسیږي».

(رواه الحافظ محمد بن عبد الواحد المقدسي في كتابه المختارة)

دغه راز ځیني زیارت کوونکي د سلام پر وخت د خپلي سیني د پاسه یا لاندي ښي لاس پر چپ کیږدي، لکه څوك چه لمونځ کوي، د سلام په وخت په دي شکل ودریدل ناروا دي، که څه سلام پر پیغمبر ﷺ وي او که پر بل چا وي، ځکه په دغه هیئت ودریدل د عاجزي او خضوع او د عبادت د هیئت ودریدل دي، دا یواځي الله (جل جلاله) پوري خاص دي، او دا د سلفو صالحینو څخه عین اتباع ده لکه حافظ ابن حجر - رحمه الله - په فتح

البـاري کي ذکـر کـړي دي، او هغـه څـوك چه په دي برخـه کي تعصب کـوي ړوند تقليـد کـوي، د صـالحـينو سلف د تګلاري په نسبت بد اټکل لري، د هغه معامله د الله سره ده.

دغه راز ځيني وګـړي د ليري څخـه د رسـول الله ﷺ قبـر ته مخ کـړي، او شونـدي په دعا يا سلام سره خـوځـوي، دا ټول د تيرو په څير بدعات دي، مسلمان ته مناسبه نه ده چه د الله جل جلاله په دين کي له ځانه څه پيدا کـړي، په داسي حال کي چه الله يي د کولو حکم نه وي کړي دي په دغه ډول عمل سره د ثواب پر ځـاي د عذاب لور ته ليږدول کيږي امام مالك (رحمه الله) د دغه ډول او ديته د ورته عملونو څخه انکار کـړي او فرمائلي دي: هيڅکله به هم وروستني د دغه امت اصلاح نشي مګر په هغه څه سره چه د لومړني د دغه امت اصلاح شوي وي، او ښکاره خبره ده چه لومـړني د دغـه امت خـو د رسـول الله ﷺ په تګلاره

باندي په تلو سره اصلاح شوي، او د راشده خليفګانو او صحابه ؤ رضي الله عنهم په اتباع سره اصلاح شوي.

### تنبيه:

د رسول الله ﷺ د قبر زيارت د حج په مراسمو کې نه واجب دي او نه شرط، لکه ځنګه چه ځيني وګړي اتکل کوي، بلکه دا مستحب دي د هغه چا لپاره چه د رسول الله ﷺ د مسجد د زيارت به نيت تللي وي، او يا هلته نژدې وي. له مديني څخه د لرو کسانو لپاره د رسول الله ﷺ د قبر د زيارت په نيت سفر کول نشته بلکه د مسجد په نيت به سفر کوي، نو کله چه مسجد ته ورسيږي نو تبعا به د رسول الله مقبري ته او د هغه د دوو ملګرو زيارت ته هم ورځي.

په صحيحينو کې روايت نقل دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «تاسو سفر مکوي مګر د دريوو مساجدو په لور:

۱ – مسجد الحرام.

۲ – زما دغه مسجد.

۳ – او مسجد اقصی»

که چهرته سفر کول د رسول الله ﷺ یا د بل چا د قبر په نیت روا واي، نو رسول الله ﷺ به خپل امت ته په دې باب حتماً ځه لار ښوونه کړي واي ځکه چه پیغمبر ﷺ تر هر چا زیات د الله تعالی په حق کښې خیر خواه او د زیات علم او ویرې خاوند دئ، او خپله دنده یي په ښه توگه تر سره کړي، او امت ته یي د خیر د هر کار لارښوونه او د شر له هر کار څخه ویرولي دي.

دا چه ځینو کسانو د رسول الله ﷺ قبر ته سفر کول روا گڼلي. هغه دي ته مفضي شوي چه د رسول الله ﷺ له قبر څخه یي بالآخره عیدگاه جوړه کړي، او د هغه په شخصیت کي یي غلو او افراط کړي، په داسي حال کي چه رسول الله ﷺ له دې څخه منع فرمایلي، او کوم

احـاديث چه په دې برخـه کې راغلي دي د هغـوي سند کمزوري او جوړ کړي شوي دي، لکه څنګه چه حافظ دار قطني، او بيهقي او حافظ ابن حجر په دې برخه کې خبر ورکړي، نو دغه دول احاديث له صحيح احاديثو سره هغه چه پرته له دغو دريو مساجدو څخه يي د نورو مساجدو او زيارتونو په لور د ترنګ ترلو ( سفر کول ) منع کړي مقابله نشي کولای.

په دې برخـه کې دادي مـحـتـرمـو لوسـتـونکو ته څو موضوعي احاديث وړاندي کوو تر څو هغه وپيژني او ځان ور څخه وژغوري:

١ ) چا چه حج وکړ او زما زيارت يي ونکړ نو له ما سره يي جفا وکړه.

٢ ) چا چه زما د مړني څخه وروسته زما زيارت وکړ نو لکه چه په ژوند کې يي زما زيارت کړي وي.

٣ ) چا چه زما او زما د پلار ابراهيم زيارت په يو کال کې

وکړ نو په الله جل جلاله باندي به ورته د جنت تضمين ورکړم.

٤ ) چا چه زما د قبر زيارت وکړ نو زما شفاعت د هغه لپاره لازم دي.

دغه پورتني احاديث د رسول الله ﷺ څخه ثابت نه دي.

حافظ ابن حجر په دي برخه کي ويلي دي:

په دغه برخه کي چه څومره روايات راغلي دي هغه ټول ضعيف روايات دي.

حافظ عقيلي ويلي دي چه په دي برخه کي يو روايت هم صحيح نه دي.

شيخ الإسلام ابن تيميه - رحمه الله - په يقين سره دا خبره کړي چه دغه پورتني احاديث ټول موضوعي او جوړ کړي شوي دي.

که يو هم له هغوي ثابت واي نو صحابه رضي الله

عنهم په حديث باندي په عمل کولو کي تر هر چا د مخه ؤ ،نو هغوي به پرې عمل کړي واي، او امت ته به يې د هغي بيان کړي واي، ځکه د انبياؤ څخه وروسته په شريعت او الهي حدودو پوه خلك صحابه ؤ، هر کله چه د هغوي څخه نه دي نقل شوي نو ښکاره شوه چه دا اصل نلري.

او که څه پکي صحيح وي نو د هغي حمل به زيارت شرعي باندي کولاي شي هغه چه يواځي د قبر په قصد پکي د ترتك تړل نه وي ثابت په دغه صورت کي به نو د احاديثو تر منيځ جمع راشي.

## د مسجد قباء او بقيع څخه ليدنه او کتنه

مديني د تلونکي لپاره مستحب ده، تر څو د قباء مسجد ته هم ورشي او دوه رکعته لمونځ پکي اداء کړي ځکه په صحيحينو کي له ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دي چه: رسول الله ﷺ به سپور او پلي مسجد قباء

ته ورته او هلته به يي دوه ركعته لمونځ ادا کاوه »

دغه راز د سهل بن حنيف – رضي الله عنه – څخه روايت دي چه رسول الله ﷺ وفرمايل:

«چا چي په کور کي اودس وکړ، او بيا مسجد قباء ته ورغي، او په هغه کي لمونځ ادا کړ، نو د هغه لپاره د عمري په اندازه اجر دي».

دغه راز د هغه لپاره مستحب ده چه د بقيع هديري ته او د شهيدانو قبرونو ته ورشي او حمزه رضي الله عنه قبر ته ورشي.

ځکه رسول الله ﷺ به هلته ورتله او دعاگاني به يي ورته کولي.

بله دا چه رسول الله ﷺ فرمايي:

« د قبرونو زيارتونو ته ورشيء ځکه هغه تاسو ته آخرت در په زړه کوي » ( رواه مسلم ).

او رسول الله ﷺ به خپلو يارانو ښودنه کوله، تر څو د

قبرونو د زيارت پر وخت دا الفاظ ووايي: «السلام عليكم أهل الديار من المؤمنين والمسلمين، وإنا إن شاء الله بكم لاحقون، نسأل الله لنا ولكم العافية» (رواه مسلم).

ترمذي د ابن عباس رضي الله عنهما څخه فرمايي چه: رسول الله ﷺ د مديني په قبرونو تيريده نو هغوي ته يي ور مخ کړاو داسي وويل:

«السلام عليكم يا أهل القبور، يغفر الله لنا ولكم أنتم سلفنا ونحن بالأثر»

له دغو احاديثو څخه معلوميږي چه هدف له زيارتونو د قبرونو په نسبت د آخرت را په زړه کول دي، او مړو ته دعا کول، په هغوي ترحم او له هغوي سره احسان کول دي.

دا چه له هغوي څخه څه غوښتل، يا د هغوي په جاه او جلال، الله نه سوال کول دا ټول بدعات او منكرات دي د الله او د هغه د رسول او صالحينو سلفو څخه يي هيڅ

کوم ثبوت نشته.

بلکه دا هماغه هجر (کنځل) دي چه رسول الله ﷺ ور څخه منع فرمایلي چه:

د قبرونو زیارتونه کوۍء او داسي مه وایاست چه، هجرًا یعني کنځل ورته مکوئ»

له قبرونو څخه دغه ډول غوښتني په بدعاتو کي راځي لکن مراتب یي مختلف دي. ځیني یي بدعات دي خو شرك نه دي.

لکه د قبرونو په وړاندي د الله جل جلاله نه غوښتل، یا د الله جل جلاله نه سوال کول. په دي دول چه د دي مړي په طفیل، د ده په جاه و جلال، او داسي نور.

او ځیني یي غټ شرك دي، لکه د مړو څخه دعا غوښتل، له هغوي څخه مراد غوښتل، او د دي، بیان تر مخه په تفصیل سره تیر شوي.

د حق په لور د لوي الله جل جلاله د بشپړ توفیق او

هدايت غوښتنه كوو، بې له شكه الله توفيق وركوونكي او لارښود دي له ده حخه پرته بل الله او بل رب نشته.

فـالحـمـد لله اولاً وآخـراً، وصلى الله وسلم على عبـده ورسـوله وخيـرته من خلقه مـحـمـد وعلى آله وأصحـابه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

# لړليك

| موضوع ګانې | مخونه |
| --- | --- |

| موضوع ګانې | مخونه |
| --- | --- |

# التحقيق والإيضاح

## لكثير من مسائل الحج والعمرة والزيارة

### على ضوء الكتاب والسنة

تأليف سماحة الشيخ

عبد العزيز بن عبد الله بن باز

رحمه الله

نقله إلى البشتو

نظام الدين عبد الجبار (شائق)

وكالة المطبوعات والبحث العلمي

وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد

المملكة العربية السعودية

١٤٣٩ هـ